## د کتاب ځانګړنې:

احمدیت کا پیغام «اردو»

حضرت مرزا بشیر الدّین محمود احمد خلیفة المسیح الثاني رضي الله عنه

لومړی چاپ: نومبر ۱۹٤۸ء

پنځلسم چاپ: فروري ۲۰۱۹ء

پښتو ژباړه: جنوري ۲۰۲٤





*UNIT 3, BOURNE MILL BUSINESS PARK, GUILDFORD, FARNHAM, SURREY UK, GU9 9PS*

*Printed in the Uk at:*

*Raqeem Press, Farnham, Surrey*

*ISBN:*


د لا ډېرو معلوماتو لاس ته راوړنې لپاره زموږ وېب پاڼې ته سر ورښکاره کړئ

www.alislam.org

# ســـــریزه

د الله تعالیٰ په فضل سره، په اوسنی زمانه کې یوازې احمدي مسلمان جماعت دی چې د رښتینې اسلام بیرغ یې په لاس کې نیولی او د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د اسلام په تبلیغ او خپراوي بوخت دی. د احمدیت مخالفان او فتنه ګره طبقه پرله پسې هڅه کوي چې د احمدي جماعت عقیدو او تعلیماتو په تړاو، عام مسلمانان له ورانپوهاویو سره مخ کړي. په دې لامل موږ ته پکار ده چې د احمدي جماعت له عقیدو او تعلیماتو څخه ځان ښه خبر کړو، تر څو نورو ته د احمدیت یانې رښتینې اسلام پیغام په بهترینه بڼه ورسولای شو.

حضرت مصلح موعود، خلیفة المسیح الثاني رضي الله عنه «د احمدیت پیغام» تر سرلیک لاندې دا کوچنی اثر په ۱۹۴۸ ء کې لیکلی او دا بنیادي پوښتنه یې پکې ځواب کړې چې احمدیت څه شی دی او د څه لپاره یې بنسټ ایښودل شوی دی. همداراز، په ډېره اسانه توګه یې د احمدیت عقیدې تر بحث لاندې نیولې دي. حضور پکې روښانه کړې چې احمدیت کوم نوی مذهب نه دی او نه احمدیان ځانته بېله کلمه لري. په همدې توګه، د ختم نبوت، پرښتو، نجات، حدیث، تقدیر او جهاد پر مسالو یې د احمدي جماعت لیدلوری بیان کړی دی.

دا کوچنی اثر زموږ نوي کول، نو مبایعینو او هغو ملګرو ته چې تبلیغ ورته کوو، ډېر ګټور دی. هیله ده چې احباب هم پخپله ورنه ګټه پورته کړي او هم یې نورو ته د لوستلو لپاره ورکړي.

منیر الدّین شمس

اېډېشنل وکیل التصنیف، لندن

جنوري ۲۰۲۴ ء

# لیکلړ

أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

نَحمَدہ ونُصلّي عَلی رَسولہ الکَریم

وَعَلی عَبدہ المَسیح المَوعُود

د خدای په فضل او رحم سره

هوالناصر

# د احمدیت پیغام

احمدیت څه شی دی او د څه لپاره یې بنسټ ایښودل شوی دی؟ دا یوه داسې پوښتنه ده چې د ډېرو اشناوو او نااشناوو په زړونو کې راګرځي. د اشناوو هغو مطالعه زیاته ژوره وي، خو د نااشناوو پوښتنې ډېرې برسېرنې وي. دوی ډېرې خبرې د علم د نشتوالي له کبله له خپل خیاله راسپړي او ډېرې نورې خبرې چې له خلکو واوري، باور پرې کوي. زه لومړی د هغو کسانو پوهاوي لپاره ځینې خبرې کوم چې د علم نشتوالي او نااشناتوب په وجه، د احمدیت په اړه له ډول ډول ناسمو باورونو سره مخ دي.

## احمدیت کوم نوی مذهب نه دی

له احمدیت سره ځینې نااشنایان داسې خیال کوي چې احمدیان د:

لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ مُحَمَّدٌ رَّسُولُ ٱللَّهِ

کلمه نه وایي او دا چې احمدیت یو نوی مذهب دی. دا باورونه دوی یا د ځینو نورو خلکو په غولولو راخپل کړي وي او یایې کله پام دې ته

واوړي چې احمدیت یو مذهب دی او هر مذهب یوه نه یوه کلمه لرلې ده، نو گومان کوي چې احمدیان به هم کومه نوې کلمه ولري. خو واقعیت دا دی چې نه احمدیت کوم نوی مذهب دی او نه مذهب کلمې ته اړتیا لري. بلکې د دې دپاسه، زه لا دا وایم چې کلمه له اسلام پرته بل د هیڅ مذهب نښه نه ده. څرنگه چې اسلام د خپل کتاب له مخه، د خپل نبي له مخه، د خپل نړیوالتوب له مخه پر نورو ادیانو بر دی، دارنگه د کلمې له پلوه هم پر نورو مذهبونو فوقیت لري. نور مذاهب کتابونه لري، خو کلام الله تر مسلمانانو پرته بل هېچا ته ور په برخه شوی نه دی. د کتاب مانا یوازې محتوا، فرایض او اوامر ده، خو د کتاب په مفهوم کې دا نشته چې په هغه کې د راغلې محتوا هر یو ټکی د خدای تعالیٰ له خوا وي. خو اسلامي کتاب د کلام الله په نوم نومول شوی دی؛ یانې څرنگه چې محتوا یې د خدای تعالیٰ له خوا بیان شوې، داسې هر یو ټکی یې هم د خدای تعالیٰ له خولې وتلی دی. د حضرت موسیٰ علیه السلام د کتاب منځپانگه هماغه وه چې خدای تعالیٰ پرې نازله کړې وه او کوم تعلیم چې حضرت عیسیٰ علیه السلام نړۍ ته وړاندې کړ هماغه و چې خدای تعالیٰ ورکړی و خو کټ مټ په همغو ټکیو نه و چې خدای تعالیٰ کارولي وو. که د تورات، انجیل او قرآن لوستونکی دې بحث ته ځوک متوجه کړي، له لسو دقیقو لوست وروسته به دې پایلې ته ورسي چې د تورات او انجیل محتوا، که څه هم د خدای تعالیٰ له لورې وي، الفاظ یې د خدای تعالیٰ له خوا نشي کېدای. خو د قرآن کریم په برخه کې به یې پرېکړه دا وي چې د هغه منځپانگه او الفاظ

دواړه د خدای تعالیٰ له لورې دي. په بله وینا، یو عام کس چې په قرآن کریم، تورات او انجیل باندې ایمان نه لري، که یو څو دقیقې درېواړه کتابه ولولي، د تورات او انجیل په اړه به مجبور وي ووايي چې د دواړو راوړونکي دعوه کوي چې البته د خدای تعالیٰ له لورې نازل شوي دي، خو قطعًا دا نه وايي چې د دواړو کتابونو هر یو ټکی او لفظ هم د خدای تعالیٰ له خولې وتلی دی. مګر د قرآن کریم په اړه به خامخا وايي چې د قرآن راوړانکی له دې ادعا سره چې د قرآن کریم مطالب د خدای تعالیٰ له لورې نازل شوي دي، دا دعوه هم کوي چې د قرآن کریم هر یو ټکی او لفظ د خدای تعالیٰ له خوا بیان شوی دی. همدا سبب دی چې قرآن کریم تر کتاب الله پرته، ځان کلام الله هم نومولی دی. خو تورات او انجیل ځان ته د کلام الله نوم نه دی کارولی نه قرآن کریم په دې نوم بللي دي. په دې توګه مسلمانان پر نورو مذهبونو په دې هم بر دي چې د نورو مذاهبو دیني کتابونه مازې کتاب الله دي، کلام الله نه دي. خو د مسلمانانو کتاب د کتاب الله سره سره کلام الله هم دی.

همدارنګه، ټول مذهبونه د نبیانو له وجود څخه راپیل شوي دي، خو هېڅ مذهب کوم داسې نبي نه دی راپېژندلی چې د ټولو دیني مسالو حکمتونه په ډاګه کولو ادعا یې کړې وي او د ګرد سره بنیادمانو لپاره یې د غوره بېلګې یا اسوې په توګه وړاندې کړی وي. مسیحیت چې اسلام ته تر ټولو ادیانو نږدې مذهب دی، دا چې مسیح یې د خدای زوی بللی، له سره یې د دې جوګه نه دی پرېښی

چې د مسیح په پل دې څوک پل واخلي. څکه انسان د خدای په څېر نشي کېدای. تورات هم حضرت موسیٰ علیه السلام د غوره بېلګې په توګه نه دی راپېژندلی. همداراز، تورات او انجیل حضرت موسیٰ او حضرت عیسیٰ علیهما السّلام د دیني حکمتونو په ډاګه کولو ذمه وار نه دي ګڼلي، خو قرآن کریم د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په تړاو فرمايي:

﴿ وَيُعَلِّمُكُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ ﴾[1]

چې دا نبي تاسو ته الهي اوامر او د هغو حکمتونه درښيي. نو اسلام ممتاز دی په دې خبره کې چې پیغمبر يې د ټولې نړۍ لپاره غوره بېلګه دی او خپل اوامر په وچ زور پر خلکو نه تحمیلوي. چې کله یو حکم کوي، د خپلو پیروانو د ایمان د لا پیاوړتیا او د دوی د جذبې د لا ډېرولو لپاره، ورته داهم وايي چې په دغو اوامرو او احکامو کې د ملت، د ملت وګړیو او د نورو انسانانو لپاره څه ګټې نغښتې دي. داسې، اسلام پر نورو مذاهبو د خپل تعلیم له مخه هم ممتاز دی. څکه چې اسلامي تعلیم د کوچني او لوی، نېستمن او شتمن، سړي او ښځې، ختیزوال او لوېدیزوال، خوار او زورور، واکمن او رعایا، څښتن او مزدور، مېړه او مېرمن، مور و پلار او اولاد، پېرودونکي او پلورونکي، ګاونډي او مسافر ټولو لپاره د هوساینې، امن او پرمختګ پیغام دی. اسلام له خپل خطاب څخه د بنیادمانو هیڅ ډله نه بې برخې کوي او د تېرشویو او راروانو ټولو قومونو لپاره لارښود دی.

[1] البقره: ۱۵۲

څرنګه چې د عالم الغيب خدای نظر تر ډېرو لاندې پراتو ذراتو ته رسيږي او هم په اسمان کې ځلاندو ستورو ته، دغسې د مسلمانانو مذهبي تعليم له يوه پلوه، د بېوزلو نه تر لا بېوزلو او د خوارو نه تر لا خوارو انسانانو اړتياوې پوره کوي او له بله پلوه، د شتمن نه تر لا شتمنو او د ځواکمن نه تر لا ځواکمنو انسانانو غوښتنې هم پوره کوي. لنډه دا چې اسلام تش د پخوانو اديانو نقل نه دی، بلکې د مذهب زنځير وروستۍ کړۍ او د روحاني نظام لمر دی او د اسلام پر کومه ځانګړنه د نورو مذهبونو قياس کول ښه کار نه دی. له شک پرته چې مذهبونه په نوم کې ټول شريک دي، خو څرنګه چې د کاربن په نوم کې الماس او سکاره دواړه شريک دي، خو الماس الماس دي او سکاره سکاره. دغسې، ډبره هم شګلنې ډبرې ته ويل کيږي او هم د مرمرو ډبرې ته ويل کيږي، خو شګلنه ډبره، شګلنه ډبره وي او د مرمرو ډبره د مرمرو ډبره. نو څرنګه چې اسلام ځانته کلمه لري، له دې نه اندازه لګول چې ګوندې نورو مذهبونو به هم ځانته کلمې لرلې وي، مازې د نااشناتوب او په قرآن کريم د غور نه کولو پايله ده. تر دې لا ډېر ظلم دا دی چې ځينو خلکو د:

[ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ إِبْرَاهِيْمُ خَلِيْلُ ٱللَّهِ، لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ مُوْسَىٰ كَلِيْمُ ٱللَّهِ، لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ عِيْسَىٰ رُوْحُ ٱللَّهِ ]

کلمې رااېستلې دي او وايي چې دا د تېر شويو مذهبونو کلمې دي. په داسې حال کې چې په تورات، انجيل او مسيحي آثارو

کې د دغو کلمو هېڅ څرک نه لګي. که وګورو په مسلمانانو کې وسمهال په زرګونه ناوړتیاوې رامنځته شوې دي، خو ګنې خپله کلمه یې هېره کړې ده؟ بیا څرنګه ویلای شو چې مسیحیانو او یهودیانو به خپله کلمه هېره کړې وي. که فرض کړو دوی خپله کلمه هېره کړې وي او دا کلمې یې لـه کتابـونـو هـم ړنګې شـوې وي، نو مسلمانانو ته دا کلمې چا ورپه ګوتو کړې. حق خو دا دی چې تـر محـمد رسـول الـله صلی الله علیه وسـلم پـرتـه بـل هېڅ نبي کلمه نه لرله. د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم له ځانګړنو څخه یوه دا ځانګړنه ده چې په ټولو نبیانو کې یوازې ده ته کلمه ورکړ شوې ده، بل هېڅ نبي ته نه ده ورکړ شوې. لامل یې دا دی چې په کلمه کې د رسالت اقرار، د توحید له اقرار سره غـبرګ شـوی دی. د تـوحید اقـرار یو تـلپاتې صـداقـت دی چې هېڅکله محوه کېدای نشي. د پخوانو نبیانو د نبوت زمانه به یو نه یو وخـت پای تـه رسېده، ځکه خـدای تـعالیٰ لـه هـغو څخه د هېڅـا نـوم لـه خـپل نـوم سـره یوځای نـه دی بیان کړی. خـو د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نبوت به پرله پسې تر قیامته پایېده او د نبوت پېر یې هېڅکله نه ختمېده، ځکه الله تعالیٰ د ده رسالت او نوم د توحید کلمې سره وبله بیان کړی، تـرڅو نړۍ تـه دا وښیي چې څرنـګه چې لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ هېڅکله نـه

ړنګیږي، داسې به مُّحَمَّدٌرَّسُولُ ٱللَّهِ هم قطعًا نه محوه کیږي. عجیبه خبره ده؛ یهودیان نه وایي چې موسیٰ علیه السلام کلمه لرله، مسیحیان نه وایي چې عیسیٰ علیه السلام کلمه لرله، صابیان نه وایي چې ابراهیم علیه السلام کلمه لرله، خو مسلمانان چې کلمه یې د خپل نبي ځانګړنه ده، په کلمې الله تعالیٰ له نورو ممتاز کړی و او د کلمې په وسیله ورته پر نورو قومونو فضیلت ورکړ شوی و، په ډېر پراخ زړه د خپل نبي دا برتري په نورو نبیانو وېشي. په داسې حال کې چې د نورو نبیانو خپل امتیان د هېڅ رنګه کلمې دعوېدار نه دي، خو دوی ورته په لوی لاس کلمې جوړوي او وایي؛ یهودیانو دا کلمه لرله، ابراهیمیانو دا کلمه لرله او مسیحیانو دا کلمه لرله.

خلاصه؛ ضرور نه ده چې هر مذهب کلمه ولري. که ضرور وای، احمدیت به بیا هم نوې کلمه نه لرله. ځکه احمدیت کوم نوی مذهب نه دی، احمدیت خو د اسلام نوم دی. احمدیت پر همغې کلمې ایمان لري چې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نړۍ ته وړاندې کړې وه، یانې:

لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ مُّحَمَّدٌرَّسُولُ ٱللَّهِ

د احمدیانو په اند؛ د دې مادي نړۍ پیدا کوونکی خدای یو دی، چې وحده لا شریک دی، ځواکونه او طاقتونه یې هېڅ پای نه لري، رب دی، رحمن دی، رحیم دی او مالك یوم الدّین دی. د هغو ټولو

صفتونو لرونکی دی، چې په قرآن کریم کې بیان شوي دي او له هغو ټولو خبرو سپېڅلی دی چې قرآن کریم ورنه پاک بللی دی. همداراز، د احمدیانو پر وړاندې محمد بن عبدالله، بن عبدالمطلب، قریشي او مکي صلی الله علیه وسلم د الله تعالیٰ رسول دی او تر ټولو وروستی شریعت پرې نازل شوی او د عربو، عجمو، تورو، سپینو، ټولو قومونو او ټولو نسلونو ته رالېږل شوی دی. د نبوت پېر یې د نبوت له دعوې نه واخله تر هاغه وخته غزېدلی ترڅو چې د نړۍ پر مخ یو ساکښ هم ژوندی وي. د ده پر تعلیم عمل کول هر انسان ته واجب دي او هر داسې انسان چې په دلیل پړ شوی وي او بیا هم پرې ایمان نه راوړي، د الهي عذاب مستحق دی. هر داسې کس چې د ده نوم وررسېدلی وي او د رښتینولۍ دلایل یې ورته وړاندې شوي وي، مکلّف دی چې ایمان پرې راوړي. که ایمان پرې رانه وړي، د ژغور حقدار به نه وي او رښتینی پاکوالی هم یوازې د ده په متابعت کولو ترلاسه کېدای شي.

# د احمدیانو په اړه د ځینو ورانپوهاویو ازاله

## د ختم نبوت په اړه د احمدیانو عقیده

له احمدیت سره ځینې نااشنایان داسې گومان کوي چې احمدیان د ختم نبوت قایل نه دي او رسول کریم صلی الله علیه وسلم د خاتَم النّبیّین په توگه نه مني. دا مازې د غولولو او د نااشناتوب پایله ده. احمدیان چې خپل ځان ته مسلمان وایي او د شهادت پر

کلمې یقین لري، څرنګه کېدای شي چې له ختم نبوت نه منکر واوسي او رسول کریم صلی الله علیه وسلم د خاتم النبیین په توګه ونه مني. په قرآن کریم کې الله تعالیٰ په واضح توګه فرمايي:

﴿ مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ ٱللَّهِ وَخَاتَمَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ ﴾[1]

محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په تاسو کې د هېڅ سړي پلار نه دی او نه به وي، خو د الله تعالیٰ رسول او خاتَم النّبیّین دی. څوک چې پر قرآن کریم ایمان ولري، څرنګه له دې آیت نه انکار کولی شي. احمدیان هېڅکله دا عقیده نه لري چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم «نَعُوْذُ بِاللّٰهِ» خاتَمُ النّبیّین نه و. احمدیان خو دا وايي چې د خاتَم النّبیّین هغه مانا چې وسمهال په مسلمانانو کې دود شوې، نه د قرآن کریم پاسني آیت سره اړخ لګوي او نه تړې هغومره د رسول کریم صلی الله علیه وسلم عزت او شان جوتیږي، څومره عزت او شان ته چې په دې آیت کې اشاره شوې ده. احمدي جماعت د خاتَم النّبیّین هغه مانا کوي چې عمومًا په عربي لغت کې متداوله ده. هغه مانا یې کوي چې حضرت عایشې رضي الله عنها، حضرت علي رضي الله عنه او ځینو نورو اصحابو تایید کړې ده، چې له مخه یې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم شان او مرتبه لا ډېره زیاتیږي او پر ټولو بنیادمانو یې برتري په اثبات رسیږي. نو احمدیان له ختم نبوت څخه منکر نه دي، بلکې د ختم نبوت له هغو ماناوو منکر دي چې په اوسنۍ زمانه کې په عامو مسلمانانو کې په خطا

[1] الاحزاب: ٤١

دود شوې دي. ګنې له ختم نبوت نه انکار خو کفر دی او احمدیان د خدای په فضل مسلمان دي او د نجات یوازنۍ لار د اسلام پر لار په تلو کې ویني.

## د قرآن شریف په اړه د احمدیانو عقیده

له احمدیت سره، له دغو نااشناوو خلکو نه ځینې داسې انګېري چې احمدیان پر قرآن شریف بشپړ ایمان نه لري او یوازې یو څو سیپارې مني. په همدې وروستیو کې په کوټه کې راسره په لسګونو کسانو ولیدل. دوی ویل چې علماوو ورته ویلي چې احمدیان په ټول قرآن باور نه لري. دا هم یو تور دی چې د احمدیت دوښمنانو په احمدیت لګولی. احمدیت باور لري چې قرآن کریم یو نابدلېدونکی او نامنسوخېدونکی کتاب دی. احمدیت د بِسۡمِ ٱللَّهِ له ب نه د وَٱلنَّاسِ تر س پورې، هر حرف او هر لفظ د خدای تعالیٰ له لورې ګڼي او د عمل وړ یې مني.

## د پرښتو په اړه د احمدیانو عقیده

له احمدیت سره ځینې نااشنایان الزام لګوي چې احمدیان د پرښتو او د شیطان قایل نه دي. دا هم یو تهمت دی. په قرآن کریم کې د پرښتو ذکر راغلی او هم پکې شیطان یاد شوی. د کومو شیانو ذکر چې په قرآن کریم کې راغلی وي، احمدیت پر قرآن کریم د ایمان لرلو ادعا سربېره، څرنګه له هغو شیانو انکار کولی شي. موږ د خدای تعالیٰ په فضل، په پرښتو بشپړ ایمان لرو. بلکې د هغو برکتونو له

کبله چې د احمدیت په وسیله موږ ته راپه برخه شوي، نه یوازې په پرښتو ایمان لرو، ان لا دا منو چې د قرآن کریم په مرسته له پرښتو سره تړاو هم پیدا کولی شو او روحاني علوم ورنه زده کولی شو.

پخپله ما گڼ شمېر علوم له پرښتو زده کړي دي. یو وار یوې پرښتې راته د فاتحې سورې تفسیر رازده کړ او له هاغه وخته تر دې دمه، د فاتحې سورې دومره زیات مطالب پر ما سپړل شوي دي چې هېڅ حد نه لري او زه دا دعوه کوم چې د هر مذهب او ملت سړی چې وي، له روحاني علومو نه په هره سکالو چې وغواړي، دی چې هرڅه له خپل ټول کتابه راایستلای شي، زه تر هغه زیات مطالب، د خدای تعالیٰ په فضل یوازې له فاتحې سورې څخه راباسلی شم. دا چلېنج زه له مودو راهیسې نړۍ ته ورکوم خو تر دې دمه دا ننگونه هېچا نه ده منلې. د فاتحې سوره؛ د خدای تعالیٰ د هستۍ پر ثبوت، د الهي توحید ثبوت، رسالت او ورته اړتیا، د کامل شریعت نښې او بنیادمانو ته یې اړتیا، دعا، تقدیر، حشر او نشر، جنت او دوزخ؛ پر دغو ټولو سکالوو چې څومره رڼا اچوي دومره رڼایي د نورو کتابونو په سلگونو پاڼې هم انسان ته نشي رسولی. په دې سبب، د پرښتو له وجود نه د انکار کولو خو پوښتنه هم نه پیدا کیږي. احمدي خو له پرښتو څخه لا د گټنې داوه هم کوي. پاتې شو شیطان، شیطان یو ناولی څیز دی، پر هغه د ایمان راوړلو خو سوال هم نه پیدا کیږي. وجود یې ځکه تسلیموو چې د وجود علم یې راته له قرآن کریم نه معلومیږي. نه یوازې وجود یې منو، ورسره دا باور هم لرو چې

خـدای تـعالیٰ مـوږ تـه ذمـه واري را تـر غـاړې کړې ده چې د شیطان طاقت به ماتوو او واکمني به یې له منځه وړو. ما شیطان هم په خوب کې لیدلی. یو وار مې ورسره کوشتي نیولې او د خدای تعالیٰ په مرسته او د تعوذ کلماتو له برکته مې ماته ورکړې ده. بیا یو ځل الله تعالیٰ راته وویل ته چې د کومې دندې لپاره وټاکل شې، د هغې پر لار به شیطان او د هغه اولاد ګڼ شمېر خنډونه واچوي، خو ته به یې د خنډونو پروا نه کوې او دا جمله به درسره وایې چې "د خدای په فضل او رحم سره" او پر مخ به درومې. هله زه پر هغه لور روان شوم چې په کوم لور راته خدای تعالیٰ د تلو امر کړی و او ما ولیدل چې شیطان او د هغه اولاد هڅه کوي چې په بېلابېلو لارو چارو مې وګواښي او ومې ډاروي. پـه ځینو ځایونـو کې بـه بې تـنه سـرونـه راڅرګند شول او هڅه یې دا وه چې ومې ترهوي او په نورو ځایونو کې به بې سره تنې راښکاره شوې. په ځینو ځایونو کې به شیطان د زمریانو او پړانګانو په څېر بڼه بدله کړه او یا به د پیلانو په شکل مخې ته راته خو ما به ورته د الهي امر په وجه، هېڅ پاملرنه نه کوله او همدا مې ویل چې "د خدای په فضل او رحم سره، د خدای په فضل او رحم سره" او پر مخ روان وم. ما به چې هرکله دا عبارت ووایه، شیطان او د هغه اولاد به وتښتېده او میدان به تش پاتې شو. لږه شېبه وروسته به بېرته په یوه نوي شکل او په یوه نوې بڼه زما مخې ته راغی، خو دا وسله به هرځل د هغه له منځه وړلو لپاره بریالۍ شوه، تر دې چې مطلوبه ځای ته ورسېدم او شیطان په بشپړ ډول، ډګر پرېښود او وتښتېد. د همدې خوب پر اساس، زه د خپلو ټولو

مهمو لیکنو سرلیک د پاسه ”د خدای په فضل او رحم سره“ عبارت لیکم. نو دا دی موږ خو د پرښتو پر وجود ایمان لرو او د شیطان وجود هم تسلیموو.

## د معجزاتو په اړه د احمدیانو عقیده

ځینې خلک وایي چې احمدیان له معجزاتو څخه منکر دي. دا هم د حقیقت په خلاف ده. د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم معجزې خو پرېږده، موږ لا په دې باور لرو چې خدای تعالیٰ د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم رښتیني پیروانو ته هم معجزې ورکوي. قرآن کریم د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم له معجزو ډک دی او یوازې یو ازلي او ابدي ړوند ورنه انکار کولی شي.

## د نجات په اړه د احمدیانو عقیده

ځینې خلک د احمدیت په اړه له دې ورانیوهاوي سره مخ دي چې وایي د احمدیه عقیدې له مخه، تر احمدیانو پرته نور ټول خلک دوزخیان دي. دا هم له احمدیت سره د نااشناتوب او یا دوښمنۍ پایله ده. موږ قطعًا دا عقیده نه لرو چې تر احمدیانو پرته نور ټول خلک جهنمیان دي. زموږ په اند څرنگه چې دا شونې ده چې یو غیر احمدي جنت ته لاړ شي، داسې دا هم ممکنه ده چې یو کس احمدي وي خو دوزخي شي. ځکه جنت تش په ژبه د اقرار کولو نتیجه نه ده، بلکې جنت د ډېرو ذمه واریو پوره کولو په پایله کې ترلاسه کیږي. همداراز، دوزخ تش په ژبه د انکار کولو پایله نه ده، بلکې دا چې څوک د دوزخ ښکار شي، گڼ شرطونه لري. هیڅ انسان،

که له لوی نه لوی صداقته منکر هم وي، ترڅو چې په دلیل پرشوی نه وي، دوزخ ته نشي تلی. پخپله رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمايي؛ څوک چې په کوچنيواله کې مړ شي يا په جگو غرونو او ځنگلونو کې اوسېږي يا داسې بوډا گان چې د زړبودی په سبب يې پوهه له منځه تللې وي يا لېوني چې له عقله خلاص وي؛ له داسې کسانو سره به مواخذه نه کيږي. خدای تعالیٰ به د قيامت په ورځ داسې کسانو ته يو ځل بيا نبي ورولیږي او د رښتيا او دروغو پېژندلو موقعه به ورکړي. بيا چې څوک په دليل پړ شي، هغه به دوزخ ته لاړ شي او څوک چې هدايت قبول کړي، هغه به جنت ته ځي. نو دا خبره سمه نه ده چې د احمديانو په اند هر هغه کس چې په احمديت کې شامل نه وي دوزخي دی. د نجات په اړه زموږ عقيده دا ده چې هر څوک چې پر صداقت له پوهېدا څخه تېښته کوي او هڅه کوي چې صداقت يې غوږ ته ور و نه لوېږي، ترڅو يې منلو ته اړ نه وي يا څوک چې په دليل پړ شوی وي او بياهم ايمان رانه وړي، د خدای تعالیٰ پر وړاندې، هغه د مواخذې وړ دی. خو که خدای وغواړي داسې کس هم ښښلی شي. د هغه د رحمت وېش زموږ په لاس کې نه دی. يو غلام خپل بادار له سخاوته نشي راگرځولی. خدای تعالیٰ زموږ څښتن او زموږ پاچا دی او زموږ خالق او زموږ مالک دی. که د هغه حکمت، د هغه علم او د هغه رحمت وغواړي چې يو داسې کس وبښي چې ښښل يې په عامو شرايطو کې ناشوني ترسترگو کيږي، نو موږ به لا څوک يو چې د هغه مخه ونيسو او موږ به څوک يو چې له ښښلو يې منع کړو.

د نجات په اړه د احمدیت عقیده دومره پراخه ده چې په وجه یې ځینو ملایانو د احمدیانو په خلاف د کفر فتوا ورکړې ده. مطلب موږ دا عقیده لرو چې هېڅ انسان به هم په دایمي عذاب نه اخته کیږي؛ نه مومن نه کافر. ځکه چې په قرآن کریم کې الله تعالیٰ فرمایي:

﴿ وَرَحۡمَتِي وَسِعَتۡ كُلَّ شَيۡءٍ ﴾[1]

چې زما رحمت هرڅه راګیر کړي دي. بیا فرمایي:

﴿ فَأُمُّهُۥ هَاوِيَةٌ ﴾[2]

یانې د کافر او دوزخ تر منځ اړیکه به د مور او د هغې د ماشوم تر او ته ورته وي. بیا فرمایي:

﴿ وَمَا خَلَقۡتُ ٱلۡجِنَّ وَٱلۡإِنسَ إِلَّا لِيَعۡبُدُونِ ﴾[3]

چې ما ټول جن و انس د دې لپاره پیدا کړي دي چې زما بندګي وکړي. د دغو او ورته نورو ډېرو آیتونو په شتون، موږ څرنګه منلی شو چې تېر آخر به خدای تعالیٰ پر دوزخیانو د خپل رحمت سیوری ونه کړي او د جهنم له ګېډې به هېڅکله نه راوځي او کوم بندګان چې خدای تعالیٰ د خپلې بندګۍ لپاره پیدا کړي وو، د تل لپاره د شیطان بندګان واوسي، هېڅکله د خدای تعالیٰ بندګان نشي، د خدای تعالیٰ د مینې ډک غږ یې ببخي مخاطب نه کړي او دا ورته ونه وایي چې:

---

[1] الاعراف: ۱۵۷

[2] القارعة: ۱۰

[3] الذاریات: ۵۷

﴿ فَٱدۡخُلِي فِي عِبَٰدِي وَٱدۡخُلِي جَنَّتِي ﴾[1]

راشئ زما په بندگانو کې شامل شئ او زما جنت ته ورننوځئ!

## په حديث باندې د احمديانو ايمان

ځينې خلک په دې وهم اخته دي چې احمديان حديثونه نه مني او ځينې يې دا تور پورې کوي چې احمديان د فقهې امامان نه مني. دا دواړه خبرې ناسمې دي. احمديت د تقليد او د ناتقليد په مساله کې منځېنۍ لار غوره کوي. د احمديت تعليم دا دی چې په داسې حال کې چې کومه خبره له محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه ثابته وي، بيا د کوم بل انسان غږ اورېدل د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم سپکاوی دی. بادار چې موجود وي د غلام غږ څوک نه اوري. استاد چې شته وي، له شاگردانو څوک سبق نه زده کوي. د فقهې امامان چې هر څومره ستر شي، بيا هم د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم شاگردان او غلامان دي. د دوی ټول عزت د محمد رسول صلی الله عليه وسلم په اطاعت کې و او د دوی ټول شان د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم په غلامۍ کې و. کومه خبره چې له رسول کريم صلی الله عليه وسلم څخه ثابته شي - نښه يې دا ده چې کوم اقـــوال چې رســـول کريم صلی الـــله عليه وسلم ته منسوب شوي وي، که له قرآن کريم سره سمون ولري - نو هغه خبره به وروستۍ پرېکړه او يو نه ماتېدونکی امر وي، هېڅوک

[1] الفجر: ۳۰، ۳۱

حق نه لري چې دا حکم رد کړي او یا یې په خلاف خوله خلاصه کړي. خو د حدیث راویان هم انسانان دي، نېک او بد پکې شته. د ښو حافظې خاوندان پکې شته، د کمزورې حافظې څښتن هم پکې دي، د ښه ذهن خاوندان پکې شته او کند ذهنه هغوی هم پکې دي. که د یوه حدیث مفهوم د قرآن کریم په خلاف وي او د قرآن کریم غوندې قطعي کتاب پر وړاندې ودرېږي، په دې لامل چې هر یو حدیث قطعي نه دی او پخپله د حدیث امامانو د اصولو له مخه ځینې حدیثونه قطعي دي، ځینې یې د عامې کچې، ځینې مشکوک او ګوماني دي او ځینې یې هسې هم جوړ شوي دي، نو هغه حدیث به د منلو وړ نه وي. خو د کومې موضوع په اړه چې د قرآن کریم رڼه لارښوونه شته نه وي او په اړه یې حدیث هم له داسې ذرېعو څخه ثابت نه وي چې خبره یقین او قطیعت ته ورسولا شي، یا د حدیث الفاظ داسې وي چې مختلفې ماناګانې ورنه اخېستل کېږي، په داسې وخت کې یقینًا د فقهې امامان، چې خپل عمرونه یې د قرآن کریم او د حدیثونو په تدبر باندې لګولي، د اجتهاد مستحق دي. یو عامي سړی چې نه یې په قرآن غور کړی وي، نه یې په حدیث غور کړی وي یا یې علم او د پوهې وړتیا د دې جوګه نه وي چې پرې غور وکړای شي، د دې ویلو حق نه لري چې امام ابوحنیفه یا امام احمد یا امام شافعي یا امام مالک او یا د دین نور امامان څه حق لري چې خبرو ته یې زما تر خبرو زیات وزن ورکړ شي، ځکه زه هم مسلمان یم او دوی هم مسلمانان وو. موږ وینو چې که یو عام سړی د کومې ناروغۍ په هکله له ډاکټر سره اختلاف ولري، د ډاکټر نظر ته د عام

سړي پر نظر لومړیتوب ورکول کیږي. که په قانوني چارو کې اختلاف وي، د وکیل نظر به د عام سړي پر رایې بر ګڼل کیږي. بیا څه وجه ده چې په دیني معاملو کې د دغو امامانو رایو ته ترجیح ورنه کړل شي چې خپل عمرونه یې د قرآن کریم او د حدیث په تدبر لګولي او ذهني ځواکونه یې تر لکونو نورو انسانانو ښه دي او ورسره الهي چلن یې پر تقوا او طهارت د تایید ټاپه لګولې ده.

لنډه دا چې؛ احمدیت نه په ټولیزه توګه د اهل حدیث د خبرو تایید کوي او نه په کلي ډول د مقلدانو ملاتړ کوي. احمدیت په دې اړه سیده او ساده هماغه د حضرت امام ابو حنیفه عقیده لري چې قرآن کریم تر ټولو مقدم دی. تر قرآن کریم راښکه صحیح حدیثونه دي، له هغو راښکته د فقهي پوهانو استدلال او اجتهاد دی. د همدې عقیدې له مخې احمدیان کله ځان ته حنفي هم وایي. په دې مانا چې د مذهب هغه تشریح چې امام ابو حنیفه کړې ده، موږ یې سمه ګڼو. همداسې، احمدیان ځینې وخت ځان اهل حدیث بولي، ځکه چې د احمدیت پر وړاندې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم خبره، که ثابته او ښکاره شي، د ټولو بنیادمانو پر اقوالو فوقیت لري. ان د ټولو امامانو پر مجموعي اقوالو هم برتري لري.

## د تقدیر په اړه د احمدیانو عقیده

له هغو وړانیوهاویو څخه چې له احمدیت سره ناآشنایان یې د احمدیه جماعت په اړه لري، یو دا دی چې احمدیان له تقدیر نه منکر دي. زه وایم احمدیان هیڅکله له تقدیر نه منکر نه دي. موږ

وایو چې د خدای تعالیٰ تقدیر په دې دنیا کې جاري دی، تر قیامته به جاري وي او هېڅوک یې تقدیر نشي بدلولی. موږ یوازې د دې خبرې خلاف یو چې څوک د غله غلا کول، د بې لمانځه لمونځ پرېښودل، د دروغـجن دروغ ویل، د ټګ ټګي کول، د قـاتـل قـتل کول او د بـدکار بدکاري کول خـدای تـعالیٰ تـه مـنسوب کړي او د خـپل مـخ تـوروالی د خـدای تـعالیٰ پـه غـاړه د ورمښلو هڅه وکړي. زمـوږ پـه انـد خـدای تعالیٰ په دې نړۍ کې هممهاله د تقدیر او تدبیر دوه غبرګ نهرونه جاري کړي دي او د:

﴿ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيَانِ ﴾[1]

ارشـاد سـره سـم، د دواړو تـرمنځ یو داسې بېلوونکی بـرید ټاکل شـوی دی چې هېڅکله له یو بل سره ټکر نه کوي. د تدبیر ډګر په خپل ځای دی او د تـقدیر میدان پـه خـپل ځای. پـه هـغو چـارو کې چې خـدای تعالیٰ خپل تقدیر لازم ګڼلی، تدبیر پکې هېڅ نشي کولی او په کومو چارو کې چې تدبیر تـه یې پکې لار پرانیستې ده، په هغو کې د تقدیر پـه تـمه خـوشې کېناستل، خـپله ګـانده بـربادول دي. د کومې خبرې چې موږ مخالف یو، هغه دا هڅه ده چې انسان خپل ناوړه کړه وړه د تقدیر په پرده کې پټ کړي، د خپلو بېغوریو او ناغېړیو جواز د تقدیر له ټکي راوباسي او چېرته چې خدای تعالیٰ د تدبیر امر کړی، هلته د تـقدیر پـه آسـره نـاسـت وي، ځکه چې پـایله یې تـل خـطرنـاکه وي. مسلمانانو خدایي تقدیر تـه سترګې نیولې وې او د قومي پرمختګ

[1] الرحمٰن:۲۱

لپاره یې اړینې هلې ځلې پرېښودې. پایله یې دا شوه چې له دین نه خو لا پخوا پاتې وو، اوس له دنیا څخه هم پاتې شول. دوی که ځیر شوي وای او په هغو چارو کې چې خدای تعالیٰ پکې تدبیر ته لار پرانېستې ده، د تقدیر پر ځای یې تدبیر په پام کې نیولی وای، اوس به یې حالت دومره غورځېدلی نه و او په دومره بد حال به اخته نه وو لکه اوس چې ورسره مخ دي.

## د جهاد په اړه د احمدیانو عقیده

د احمدیت په اړه له ورانپوهاویو څخه یو دا هم دی چې احمدیان له جهاد نه منکر دي. دا خبره هم سمه نه ده. احمدیان له جهاده منکر نه دي. احمدیان په دې عقیده دي چې جګړې په دوه ډوله وي؛ یو جهاد دی او بل مازې جګړه. جهاد هغې جګړې ته ویل کیږي چې د مذهب د ژغور لپاره له داسې دوښمنانو سره مبارزه وشي چې د تورې په زور مذهب له منځه وړي او د برچې په ځوکه خلک خپله عقیده بدلولو ته اړباسي. که په نړۍ کې داسې پېښې راښکاره شي، نو جهاد په هر مسلمان باندې فرض ګرځي. دا ډول جهاد یو مهم شرط لري چې جهاد باید د امام له خوا اعلان شوی وي، ترڅو مسلمانانو ته پته وي چې څوک سمدستي په جهاد کې برخه واخلي او څوک دې خپل وار ته ایسار وي. که امام نه وي نو د داسې جهاد وخت په راتلو چې هر مسلمان پکې برخه وانخلي، هغه به ګناهګار وي. خو که امام موجود وي، یوازې هغه مسلمانان به ګناهګار وي چې جهاد ته وربلل شوي وي او دوی نه وي ورغلي. احمدي جماعت

به چې کله په کوم هېواد کې له جهاد نه انکار کاوه، دلیل یې دا و چې هلته انګرېزانو د تورې په زور د مذهب د بدلانه هڅه نه کوله. که د احمدي جماعت دا سوچ غلط و او انګرېزانو په رښتیا د تورې په زور د مذهب د بدلولو هڅه کوله نو جهاد به یقیناً واجب و. جهاد چې واجب شو، پوښتنه دا ده چې بیا ګنې هر مسلمان توره په لاس کې واخېسته او له پېرنګیانو سره یې مبارزه وکړه؟ که یې نه وي کړي، احمدیان به خدای تعالیٰ ته ځواب وایي چې زموږ په اند د جهاد وخت لا نه و راغلی. موږ که تېروتنه کړې وي، زموږ خطا به اجتهادي وي، خو زموږ مخالف ملایان به ورته څه ځواب وایي. دوی به وایي چې خدایه! وخت خو د جهاد و، موږ یقین لاره چې د جهاد وخت دی او باوري وو چې جهاد فرض شوی دی. خو یا خدایه! موږ بیا هم جهاد ونه کړ، ځکه چې په زړونو کې ډارېدو. نه مو هغه کسان جهاد ته ورمخته کړل چې زړور وو، ځکه موږ سره دا وېره وه چې که مو داسې وکړل، انګرېزان به مو پرې ونیسي. له دغو دواړو ځوابونو څخه کوم یو د خدای تعالیٰ پر وړاندې ډېر د منلو وړ دی؟ دا قضاوت زه منصف مزاجه خلکو ته پرېږدم!

تر دې دمه چې ما څه وویل، هغه مې د داسې خلکو د وسوسو له منځه وړلو لپاره وویل چې د احمدیت سرسري مطالعه هم نه لري او د احمدیت پیغام یې له دوښمنانو اورېدلی یا یې تر مطالعې پرته د احمدیت عقاید او د احمدیت تعلیمات له خپلو زړونو راتراشلي وي. خو اوس زه هغو کسانو ته خطاب کوم چې احمدیت یې تر یوه

حده مطالعه کړی او په دې پوهېږي چې احمديان د خدای تعالیٰ په توحيد يقين لري، د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم په رسالت ايمان لري، قرآن کريم مني، حديث مني، لمونځونه کوي، روژې نيسي، حج کوي، زکات ورکوي، په حشر و نشر او جزا و سزا باندې ايمان لري، خو حيران دي چې احمديان که د نورو مسلمانانو په شان وي، د نوې فرقې رامنځته کولو اړتيا څه وه؟ دوی د احمديانو په عقيده او د احمديانو په عمل انتقاد نه لري، اعتراض په دې کوي چې که د احمديانو او د نورو مسلمانانو ترمنځ توپير نشته، بيا له نورو نه د بېلېدو او د يو نوي جماعت جوړولو اړتيا څه وه. چې هېڅ اختلاف نه و، د بېل جومات جوړولو موخه څه و؟

## د نوي جماعت جوړولو وجه

دا پوښتنه په دوه ډوله ځوابېدای شي. په منطقي توګه او بل په روحاني توګه. په منطقي توګه يې ځواب دا دی چې جماعت تش د شمېر نوم نه دی. زر، سل زره، يا لس ميليونه وګړيو ته جماعت نه ويل کيږي. جماعت د هغو افرادو ټولګه وي چې په ګډه توګه د کار کولو هوډ وکړي او د يوه متحده پلان سره لاس په کار شوي وي. داسې افراد که پينځه يا اووه وي، بيا به هم جماعت وي. که دا خبره پکې نه وه، چې کروړونه وي هم جماعت نشي باله کېدای. رسول کريم صلی الله عليه وسلم چې په مکه کې د نبوت دعوه وکړه، په لومړنۍ ورځ پرې يوازې څلورو کسانو ايمان راووړ، پينځم يې پخپله دی و. پر دې سربېره چې پينځه وو، يو منظم جماعت يې جوړ کړی

و. د دې په مقابل کې په مکه کې اته یا لس زره نفوس وو، خو هغوی جماعت نه وو، نه د عربستان وګړي جماعت وو. ځکه چې په ګډه توګه یې د کار کولو هوکړه نه وه کړې او نه یې کومه ګډه طرحه لرله. تر دې پوښتنې مخکې، سړی باید لږ فکر وکړي چې ګنې وسمهال مسلمانان یو جماعت دي؟ د نړۍ مسلمانانو په ټولو چارو کې په شریکه د کار کولو هوډ کړی او یا کومه ګډه طرحه لري؟ تر هغې پورې چې خواخوږي تړاو لري، زه منم چې د مسلمانانو په زړونو کې د یو بل لپاره خواخوږي شته، خو په ټولو مسلمانانو کې نشته. د ځینو په زړونو کې شته او د ځینو په زړونو کې نشته. بیا داسې یو نظام نشته چې اختلاف پرې له منځه وړل شي. اختلاف خو په جماعت کې هم وي، ان د نبیانو د وخت په جماعتونو کې هم وي. د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې به ځینې وخت د انصارو او مهاجرو ترمنځ اختلاف پیدا شو او کله په ځینو نورو قبیلو کې اختلاف رامنځته کېده، خو رسول کریم صلی الله علیه وسلم چې به خبره وکړه ټول اختلاف به له منځه لاړ. په همدې توګه، د خلافت په وختونو کې هم اختلافات پیدا کېدل. چې هرکله به پیدا شول خلفاو پرېکړه کوله او اختلافات به له منځه تلل. تر خلافت شاوخوا اویا کاله وروسته پورې مسلمانان چې هرچېرې وو، تر یوې واکمنۍ لاندې د یوه نظام تابع وو. هغه نظام ښه و یا بد، خو مسلمانان یې په یوې لړۍ کې سره پېیلي وو. وروسته اختلاف رامنځته شو او مسلمانان په دوو ډلو ووېشل شول. یوې خوا ته د هسپانیې ټولې شوه او بل لور ته د نړۍ نور مسلمانان سره ډله شول. اختلاف و خو

ډېر محدود و او د نړۍ لويه برخه مسلمانان لا د يوه نظام تابع روان وو. خو درې سوه کاله وروسته دا نظام داسې مات شو چې په ګردسره مسلمانانو کې اختلاف پيدا شو، درزونه پکې پيدا شول او تيت و پرک شول. رسول کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي وو:

[ خَيْرُ الْقُرُوْنِ قَرْنِىْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَفْشُوْا الْكَذِبُ ] [1]

تر ټولو ښه پېړۍ هغه پېړۍ ده چې زه پکې يم، ورپسې به د دويمې پېړۍ خلک وي او بيا به د درېيمې پېړۍ خلک وي. بيا به صداقت له نړۍ څخه محوه شي او د ظلم، تېري او اختلاف دور دوره به راشي. بيا همداسې وشو او دا اختلاف مخ پر زياتېدو شو، تر دې چې په تېرو درېيو پېړيو کې مسلمانانو په بشپړ ډول خپل واک و ځواک له لاسه ورکړل. چېرته هغه وخت و چې اروپا له يوه يوه مسلمان پاچا نه وېرېدله او چېرته دا وخت چې د اروپا و امريکا له يوه يوه ځواک سره د مقابله کولو توان په ټوله اسلامي نړۍ کې نشته. په فلسطين کې د يهوديانو يو وړوکی غوندې حکومت جوړ شوی دی. د شام، عراق، لبنان، سعودي عرب، مصر او فلسطين پوځونه ورسره مبارزه کوي، خو واقعيت دا دی چې هغه منطقه چې ملګرو ملتونو يهوديانو ته ورکړې وه، وسمهال تر هغې ډېره زياته نوره برخه هم د يهوديانو تر ولکې لاندې راغلې. سمه ده چې امريکا او بريتانيا يهودي حکومت سره مرسته کوي، خو خبره هماغه ده چې کله به د مسلمانانو يو يو

[1] مسلم کتاب الفضائل فی فضل الصحابة ثم الّذين يلونهم.

حکومت پر ټول ختيځ برلاسی و او اوس د ختيځ ځينې حکومتونه تر ټولو مسلمانانو زيات ځواکمن دي.

نو د جماعت د مفهوم له مخه، وسمهال مسلمانان هېڅ جماعت نه لري. حکومتونه شته، چې تر ټولو لوی يې د پاکستان حکومت دی او د الله تعالیٰ په فضل سره نوی رامنځته شوی دی، خو اسلام نه د پاکستان نوم دی، اسلام نه د مصر نوم دی، اسلام نه د شام نوم دی، اسلام نه د ايران نوم دی، اسلام نه د افغانستان نوم دی، اسلام نه د سعودي عربستان نوم دی. اسلام د يووالي هغې لړۍ ته وايي چې گردسره مسلمانان يوځای کړي. خو اوس په نړۍ کې د داسې هېڅ انتظام وجود نشته. پاکستان به له افغانستان سره خواخوږي ولري، افغانستان به له پاکستان سره خواخوږي ولري، خو نه پاکستان د افغانستان هرې خبرې منلو ته تيار دی او نه افغانستان د پاکستان هرې خبرې منلو ته چمتو دی. د دواړو سياست جلا جلا دی او دواړه يې په خپلو داخلي چارو کې ازاد دي. د افرادو يې هم داسې حال دی. د افغانستان اوسېدونکي په خپل ځای کې ازاد دي او د پاکستان اوسېدونکي په خپل ځای کې ازاد دي او د مصر اوسېدونکي په خپل ځای کې ازاد دي. داسې څه نشته چې په يوه لړۍ کې يې سره وپېيي. نو وسمهال مسلمانان شته او هم د مسلمانانو حکومتونه شته او ځينې حکومتونه يې د خدای په فضل سره لا پياوړي کيږي، خو مسلمانان يو جماعت نه دي. فرض کړئ د پاکستان جنگي بېړه دومره پياوړې شي چې د هند پر ټول

سمندرگي واک وچلوي، پوځ يې دومره تکړه شي چې د هند اتحاديه ورنه لـه وېرې ورپيږي. اقـتصادي حـالـت يې دومـره پـراخ شـي چې د نړۍ بازارونه يې تر ولکې لاندې راشي. ځواک يې دومره ډېر شي چې ان د امريکا تر ځواکه زيات شي، نو ايران، شام، فلسطين او مصر به گنې له پاکستان سره ځان پيوستولو ته تيار شي؟ ښکاره ده چې نه. د پاکستان د عظمت اقرار به وکړي، خواخوږي به ورسره وښيي، خو دې ته به تيار نشي چې خپل وجود پکې محوه کړي. نو که څه هم د خدای تعالیٰ په فضل سره د مسلمانانو سياسي حالت د ښه والي لور ته روان دی او ځينې نوي اسلامي حکومتونه د رامنځته کېدو په حال کې دي. خو پر دې سربېره د ټولې نړۍ مسلمانانو ته يو اسلامي جـمـاعـت ځکه نـشو ويلای چې پـه مـختلفو سياسـتونو وېشل شـوي دي او پـه جـلا جـلا حکومـتونـو تقسيم دي. هېڅ داسې ځواک نشـتـه چې د ټولـو غړيو محـراق تـه راټول کړي. خـو اسـلام بيا د نړيوالـتوب ادعـا کوي. اسلام پـه عـربسـتان کې د مېشتو مسـلمانانو نوم نـه دی. اسلام پـه شام کې د مېشتو مسـلمانانو نوم نـه دی. اسـلام پـه ايران کې د مېشتو مسـلمانـانـو نـوم نـه دی. اسـلام پـه افـغانسـتان کې د مېشتو مسـلمانـانـو نـوم نـه دی. چې کله پـه نړۍ کې د هـر هېواد مسلمانان د اسلام په نامه سره يوځای شي، هاله به يوازې داسې جـمـاعـت اسلامـي جـمـاعـت وبـلل شـي چې دا ټولې خـورې ورې ټولۍ سره يو موټی کړي. ترڅو چې په نړۍ کې داسې جماعـت راولاړ شوی نه وي، موږ مجبور يو ووايو چې وسمهال په مسلمانانو کې حکومت او سياست شته، خو جماعت هېڅ نشته.

په همدې ډول، د ګډې طرحې مساله ده. له یوه پلوه، هېڅ داسې انتظام نشته چې د ټولې نړۍ مسلمانان سره راټول کړي، له بلې خوا مسلمانان کومه ګډه طرحه نه لري، نه سیاسي، نه مدني او نه مذهبي. په ځینو ځینو ساحو کې په انفرادي بڼه د اسلام له دوښمن سره د مسلمانانو مبارزه کول جلا خبره ده خو په ګډ ډول او تر یوه ځانګړي نظام لاندې، له څلور واړو اړخونو د دوښمن د یرغل جاج اخېستل او بیا ورسره مبارزه کول بیخي بېله خبره ده. نو مسلمانان د طرحې له پلوه هم یو جماعت نه دي. چې په داسې شرایطو کې یو جماعت راولاړ شي او له پاسنیو دواړو موخو سره راولاړ شوی وي، دا نېوکه پرې نشي کېدای چې ولې یو نوی جماعت جوړ شوی دی. بلکې پکار ده چې وویل شي چې پخوا هېڅ جماعت نه و، اوس ښه شوه چې یو جماعت جوړ شوی دی.

ممکن د ځینو ملګرو په زړونو کې بیا شک پیدا شي چې سربېره پر یوه لمانځه، یوې قبلې، یوه قرآن او یوه رسول، احمدي جماعت ولې د یو بېل جماعت بنسټ کېښود. زه دوی ته وایم چې دې ټکي ته ځیر شي او فکر پرې وکړي چې اوس یې هم وخت نه دی راغلی چې اسلام بېرته یو جماعت شي؟ د دې چار لپاره به نور لا څومره انتظار باسو؟ د مصر حکومت خپله برخه کار کوي، د ایران حکومت خپله برخه کار کوي، د افغانستان حکومت خپله برخه کار کوي. نور اسلامي حکومتونه هر یو خپله خپله دنده ترسروي، د هغو شتون سره سره یوه تشه لا هم پاتې ده او یو کمی لا هم شته. احمدي

جـماعـت د هـمدې تشې ډکولـو او د هـمدې کمي پـوره کولـو لـپاره رامنځته شوی دی.

تـرکانـو چې کله تـرکي خـلافـت پـای تـه ورسـاوه - د ځینو رازدارانـو پـه خبره د مصر پاچا په فرمان - د مصر ځینو علماو د خلافت غورځنګ پیل کړ. مـوخـه یې دا وه چې د مـصر پـاچـا د خـلیفة المسـلمین پـه تـوګـه ومنل شـي. داسې بـه مـصر پـر نـورو هېوادونـو بـرتـري ومومـي. سعودي عـرب یې کلک مخالفت وکړ او تبلیغات یې پسې وکړل چې دا د انګرېزانو په لمسون راپورته شوی غورځنګ دی. که رښتیا څوک د خلافت حقدار وي، هغه به د سعودي عرب پاچا وي. تر هغې چې خـلافـت تړاو لـري، دا یقینًا یوه داسې لړۍ ده چې پـر مټ یې ټول مسلمانان یو ځای ته سره راټولېدای شي، خو د خلافت ټکی چې هر کله کوم خاص پاچا ته ځانګړی شوی، سمدستي نورو پاچاهانو فکر کړی چې دا خـو زمـوږ پـه حکومـت کې درز اچـوي. داسې نـو دا ګټور غـورځنګ بېکاره پاتې شوی. خـو که همدا خوځښت په عـامو خلکو کې راپـورتـه شـي او تـر شـا یې مـذهـبي انګېزه ولاړه وي، نـو سیاسـي رقـابت یې په لار کې خنډ نه جوړیږي. یوازې جـماعـتي سیالي بـه یې مخه نیسي. داسې غـورځنګ بـه د سیاسي رقابت په وجه یوازې پـه هـغه هېواد کې ټکنی او محـدود شـي چې حکومـت یې مـلاتړی وي. خـو د جـمـاعـتي مـخالـفت پـه صـورت بـه، پـه هېڅ هېواد کې لـه محدودیتونو سره نه مخېږي. هر هېواد ته به رسي، پکې خپرېږي به او جـرړې بـه پکې ننباسي. ان چې غیر اسلامي حکومت تـه لاړ شـي،

هلته به هم بریالی وي. ځکه چې حکومتونه به د سیاسي ټکر د نشتون لامله په پیلني وختونو کې ورسره مخالفت نه کوي. د احمدیت تاریخ پر همدې خبرې شاهد دی. د احمدیت موخه مازې دا وه چې په مسلمانانو کې یووالی رامنځته کړي. د پاچاهۍ او واکمنۍ غوښتنه یې هېڅ وخت نه ده لرلې. انګرېزانو ځینې وخت په خپل هېواد کې احمدیت ته کړاوونه رسولي دي، خو دا چې احمدیت یو سوچه مذهبي تحریک و، ځکه په زغرده یې ورسره تصادم ته اړتیا نه ده لیدلې. په افغانستان کې د ملایانو په وېره، ځینو واکمنانو تشدد کړی، خو په خصوصي ناستو کې یې خپل عذر څرګند کړی او پښېمانتیا یې ښیلې ده. داسې په نورو اسلامي هېوادونو کې عامو خلکو مخالفت کړی، علماو مخالفت کړی او د هغو په وېره، حکومت هم ځینې وخت خندونه اچولي، خو هېڅ حکومت داسې نه دي انګېرلي چې ګنې دا تحریک به زموږ د حکومت تخته رانسکورولو لپاره راولاړ شوی وي. د دوی دا خیال بشپړ سم و.

احمدیت له سیاست سره هېڅ سروکار نه لري. احمدیت یوازې د دې موخې لپاره راولاړ شوی دی چې د مسلمانانو دیني حالت سم کړي او په یوه لړۍ کې یې سره وپېیي، ترڅو دوی ټول سره یوموټی شي او په روحاني او اخلاقي وسلو له دوښمنانو سره مبارزه وکړي. د همدې خبرې په درک کولو سره، احمدي مبلغان امریکا ته ورغلل. هلته چې تر کوم بریده دوی له آسیایانو سره مخالفت کوي، له احمدي مبلغانو سره یې هم مخالفت وکړ، خو په دې وجه یې

ورسره هېڅ مخالفت نه دی کړی چې احمدیت یو مذهبي تحریک دی. د هالنډ حکومت په اندونیزیا کې احمدیان وڅارل چې په سیاست کې ورسره ډغره نه وهي، نو هلته یې هم له همدې پالیسۍ کار واخیست. البته پټو څارنو ته یې دوام ورکړ او کله یې بېغوري هم وکړه، خو په زغرده یې له احمدیت سره ټکر ته اړتیا ونه لیده، او په دې اقدام کې بلکل حق په جانب وو. دا چې موږ یې د مذهب په خلاف تبلیغ کاوه، نو د خواخوږۍ تمه مو نه ورنه لرله. د دوی له سیاست سره مو مستقیمه مخامختیا هم نه کوله، ځکه دوی حق نه لاره چې نېغ په نېغه دې له موږ سره ډغره ووهي. د دې نتیجه دا شوه چې احمدي جماعت اوس نېژدې په هر هېواد کې قایم دی. په هندوستان کې شته، په افغانستان کې شته، په ایران کې شته، په عراق کې شته، په شام کې شته، په فلسطین کې شته، په مصر کې شته، په اېټالیا کې شته، په سویس کې شته، په المان کې شته، په بریتانیا کې شته، د امریکا په متحده ایالاتو کې شته، په اندونیزیا کې شته، په مالایا، ختیځې او لوېدیځې افریقا، اېتوپیا، ارجنټاین او داسې په هر هېواد کې لږ یا ډېر جماعت موجود دی[1].
داسې هم نه ده چې هلته دې یوځو هندوستانیان احمدیان شوي وي، بلکې پخپله د هغو هېوادونو ځایي اوسېدونکي پکې شامل دي او دومره اخلاصمن دي چې د اسلام چوپړ ته خپل ژوند قربانوي. یوه انګرېز ډګرمن خپل ژوند وقف کړی او اوس د مبلغ په توګه په

[1] دا د ۱۹۴۸ء لیکنه ده. تر هغې وروسته احمدي جماعت د نړۍ په نورو هېوادونو کې هم هم قایم شوی دی. «ژباړن»

انګلستان کې دنده ترسروي. منظم لمونځونه کوي، شرابو او نورو ناوړو شیانو ته قطعًا نه ورنېږدې کیږي. په خپله خواری مزدوری پیسې ګټي، تبلیغاتي پاڼې پرې خپروي اوغونډې پرې جوړوي. موږ ورته د ګوزارې لپاره دومره لږې پیسې ورکوو چې د انګلستان یو جاروکښ هم تر هغو زیاته ګټه کوي. داسې په المان کې یوه کس ژوند وقف کړی. دی هم پوځي افسر دی. په سختو هلو ځلو له المانه په راوتو بریالی شوی. اوس خبر راغلی چې سویس ته رسېدلی او هلته خپلې وېزې ته په تمه دی. دا ځوان په زړه کې اسلام ته د خدمت کولو خورا ډېر جوش لري او په دې موخه پاکستان ته راروان دی چې دلته د اسلام بشپړ تعلیم ترلاسه کړي او د اسلام تبلیغ لپاره کوم بل هېواد ته لاړ شي. د المان یو بل زلمی لیکوال او د هغه تعلیم یافته مېرمن ژوند وقفولو ته ژمن دي، ښایي دا پرېکړه ډېر ژر وکړي او د اسلامي تعلیماتو زدکړې لپاره پاکستان ته راشي. داراز، د هالنډ یوه ځوان اسلام ته د ژوند وقفولو هوډ کړی او ښایي ډېر ژر په کوم هېواد کې د اسلام تبلیغ په دنده بوخت شي. دا سمه ده چې احمدي جماعت په شمېر کې لږ دی، خو مهمه دا ده چې د دې په وسیله ورو ورو اسلامي جماعت په رامنځته کېدو دی او له هر هېواده او د هر سیاست له پلویانو نه څه نا څه کسان ورسره پیوست کیږي، چې دا ټول د یوه نړیوال اتحاد بنسټ جوړوي. د دا ډول خوځښتونو پیلامه په لومړیو کې ډېره وړه وي، خو یو وخت راځي چې یو ډول فوري ځواک ترلاسه کوي او په ځو ورځو کې د اتحاد او اتفاق په تخم پاشلو کې بریالی شي. نو

ښکاره خبره ده چې سیاسي ځواک ته د رسېدو لپاره سیاسي جماعتونو ته اړتیا وي، خو مذهبي او اخلاقي ځواک ترلاسه کول بیا مذهبي او اخلاقي جماعتونه غواړي. احمدي جماعت په همدې دلیل له سیاست څخه ډډه کوي چې که ځان پکې ښکېل کړي نو په خپل اساسي کار کې به تنبل شي.

## د احمدي جماعت طرحه

دويمه د طرحې مساله وه. د طرحې له مخه هم يوازې احمدي جماعت دی چې يوه متحده طرحه لري. بل هېڅ جماعت متحده پروگرام نه لري. احمدي جماعت د مسيحيت يرغل په بشپړه توګه ارزوي او بيا ورسره په هر هېواد کې مبارزه کوي. افريقا دا وخت د نړۍ تر ټولو کمزورې او له ځينو نورو اړخونو، تر ټولو ځواکمنه سيمه ده. مسيحيت وسمهال، په بشپړ ځواک سره پر افريقا يرغل وروړی. اوس خو دوی علانيه خپله دا اراده څرګندوي. مخکې به يوازې د پادريانو پام هلته وراواښت، بيا د بريتانيا محافظه کار ګوند ورمايل شو، اوس دا دی ليبرال ګوند هم اعلان کړی چې د اروپا ژغور د افريقا په پرمختګ او د هغې په منظمولو پورې تړلی دی. اروپا په دې باور وه چې د افريقا دا پرمختګ او تنظيمول يوازې په دې شرط اروپا ته ګټور تمامېدای شي چې وګړي يې عيسويت ته راواوړي. احمديت څلورويشت کاله پخوا دا راز موندلی او هلته يې خپل مبلغان ليږلي او په زرګونو زرګونو کسان له مسيحيت نه اسلام ته رااوښتلي دي. په افريقا کې دا وخت تر ټولو منظم اسلامي جماعت، احمدي

جماعت دی چې مسیحیان ورسره له مبارزه کولو تېښته کوي او د دوی په خپلو لیکنو او کتابونو کې پرله پسې د دې خبرو څرګندونې کیږي چې د احمدي جماعت هلو ځلو د عیسوي مبلغانو کوښښونه شنډ کړي دي. همدا تبلیغي لړۍ په ختیځه افریقا کې هم له کلونو کلونو راهیسې دوام لري. که څه هم هلته مو کار نوی پیل کړی او په دې لامل، پایلې یې لا دومره شانداري نه دي څرنګه چې په لوېدیځه افریقا کې دي، خو بیاهم له عیسویانو څخه ځینې خلک اسلام ته را روان دي. تمه ده چې دلته به هم په یوڅو کلونو کې زموږ د مبلغانو هڅې لوړې پایلې ولري. په اندیونیزیا او مالایا کې هم له اوږدې مودې راهیسې زموږ ماموریت دوام لري او هغه ټولی چې له اسلامه تښتېدلي، بېرته یې راګرځوي او سره یوځای کوي یې. چې کله یې راټولې کړي، هڅه کوي چې بېرته یې د دوښمن پر وړاندې ودروي. د امریکا متحده ایالات، په عیسوي ځواکونو کې اوس تر ټولو پرمختللی هېواد دی. هلته هم احمدي مبلغان له تېرو څلورویشتو کلونو راپه دې خوا کار کوي. د امریکا په زرګونه اوسېدونکي احمدیان شوي دي او هر کال په زرګونه روپۍ هلته د اسلام په تبلیغ لګوي. دا د امریکا حکومت په مقابل کې هېڅ هم نه دي او د ځایي بامبړانو د هلو ځلو پر وړاندې، یوه ناڅیزه هڅه ده. خو مهمه یې دا ده چې مبارزه پیل شوې ده او بریا موږ ته راپه برخه کیږي. ځکه عیسوي ډله زموږ افراد ځان ته نه ورکاږي، دا موږ یو چې د عیسویانو له ډلې خلک راباسو او له ځان سره یې یوځای کوو. په دې لاسوند، څوک دې دا نه وایي چې احمدیت یو نوی جماعت ولې

جوړ کړی، بلکې داسې دې ووايي چې احمديت په داسې حال کې يو جماعت جوړ کړی دی چې پخوا هېڅ جماعت نه و. نو دا خبره د اعتراض وړ ده او که د ستايلو ده؟

## له نورو جماعتونو څخه د احمديانو د بېلولو وجه

ځينې خلک وايي جماعت جوړولو ته اړتيا څه وه؟ دا خبرې به مو هسې په دې نورو مسلمانانو کې خپرې کړې وای. د دې منطقي ځواب دا دی چې يو قومندان يوازې هغه کسان جګړې ته ورلېږلی شي چې پوځ کې استخدام شوي وي. څوک چې اردو ته استخدام شوي نه وي، څرنګه به يې ورلېږي؟ که جماعت مو جوړ کړی نه وای، د احمديه سلسلې بنسټګر به له چا څخه کار اخېستای او چا ته به يې امر کاوه. خلفاوو به يې له چا کار اخېستای او چا ته به يې حکم کاوه. ګنې په بازارونو کې به ګرځېدل او هر مسلمان به يې له مټه رانيوه او ورته به يې ويل چې نن د اسلام لپاره په پلاني ځای کې اړتيا ده، ته هلته ورشه. هغه به ځواب وايه چې؛ زه خو ستا خبرې منلو ته تيار نه يم. بيا به يې دا بل سړی رانيوه او ورپسې به يې دا بل رانيوه. دا يو منطقي حقيقت دی چې کله څوک يو منظم کار ترسره کوي، د ترسراينې لپاره يې يو جماعت ته اړتيا وي او تر يو داسې جماعت پرته هېڅ منظم کار نشي ترسره کېدای. که څوک ووايي چې جماعت به مو جوړ کړی وای، خو له نورو خلکو به مو ځان نه بېلاوه. د دې ځواب دا دی چې هر سړی داسې کار ته چېرته تياريږي چې خپل ژوند په خطر کې واچوي. داسې کارونه خو يوازې لېونيان

کولی شــي او لېونيان بــايد لــه هــوښيارانــو بېل وســاتــل شــي. که هوښياران راولاړ شي او لېونيان هم د خپل ځان په شان کړي، دا کار به بيا څوک ترسره کوي. همداراز، له نورو نه ځان بېلول، پخپله په طبيعتونو کې حيرانتيا راولي، خلک ورته پخپله په تلوسه شي او پلټنې ته يې اړباسي او تېرآخر پخپله د هماغه څه ښکار شي چې له منځه وړلو پسې يې متې رانغاړلې وې. نو ټولې نېوکې د فکر کموالي نتيجه دي. که له عقل نه کار واخېستل شي، سړی پوهېدای شي چې په اصل کې يوازې هماغه لار سمه ده چې احمديت پرې روان دی. احمديان د همدې لار په نېولو سره توانېدلي چې د اسلام لپاره د قربانـي ورکونکيو يو جماعـت رامنځته کړي. ترهغې چې دا لار عملي کوي، د داسې کسانو شمېر به ورځ په ورځ لا پسې زياتوي او يوه ورځ به کفر ته احساس وشي چې اوس په اسلام کې طاقت پيدا شوی، نو دوی به له خپل بشپړ ځواک سره پر اسلام يرغل وکړي، خو د يرغل وخت به تېر شوی وي. ميدان به ترې اسلام وړی وي او کفر به ماتې خوړلې وي.

موږ د سياسي هلو ځلو کوونکيو په لار کې خنډ نه جوړېږو. موږ ورته وايو چې ترهغې چې زموږ په خبرو مو سر نه خلاصيږي، تاسو خپل کار ته دوام ورکوئ. خو ورسره، دا هيله ځنې کوو چې موږ دې له خپلې لارې نه راګرځوي. بيا چې د چا فکر ته د دوی طريقه ښه ورمعلومه شي، هغه به له دوی سره يوځای شي او د چا فکر ته چې زموږ طريقه ښکاره شي، هغه به له موږ سره يوځای شي. د دوی

په طریقه کې سربښندنه لږه او شهرت ډېر دی او زموږ په طریقه کې سربښندنه ډېره او شهرت لږ دی. دوی ته به د دوی برخه وررسېږي او موږ ته به زموږ برخه رارسېږي. د چا په اند چې د مغز او حقیقت له پلوه د اسلام قیام ډېر ضروري وي، هغه به له موږ سره یوځای شي او څوک چې په ظاهري پاچاهۍ مین وي، له هغوی سره به یوځای شي. نو موږ جنګ ولې وکړو او جګړه ولې وکړو؟ دواړه د ولس له غمه کړېږو، خو د بدن جدا جدا غړي مو خوږمن دي. د دوی ماغزه درد کوي او زموږ زړونه په اذیت دي. دا ځواب مې د منطقي لیدلوري له پلوه ویلی دی، اوس له روحاني او معنوي لیدلوري ورته ځواب وایم او زما په اند همدا یې واقعي لیدلوری دی.

د دې پوښتنې روحاني ځواب دا دی چې له پخوا نه د الله تعالیٰ تګلاره دا ده چې هرکله چې ورانی پر ځمکه خپور شي، روحانیت له منځه لاړ شي او خلک دنیا ته پر دین لومړیتوب ورکړي. په داسې وخت کې الله تعالیٰ د خپلو بندګانو د هدایت او لارښوونې لپاره له اسمانه خپل استازی رالیږي. ترڅو ورک شوي بندګان یې بېرته د هغه پر لور ورولي او د هغه استول شوی دین یوځل بیا په نړۍ کې پر پښو ودروي. دا استازي ځینې وخت له ځان سره شریعت راوړي او کله د کوم پخواني شریعت د ټینګښت لپاره راځي. په قرآن کریم کې د خدای تعالیٰ پر دې تګلاره خاص ټینګار شوی او بنیادمان یې د خدای تعالیٰ د دغه ترحم او مهربانۍ پېژندنې ته متوجه کړي دي.

په دې کې څه شک نشته چې خدای تعالیٰ د خورا لوی شان څښتن

دی او انسان یې پر وړاندې تر چینجي هم ډېر ناکاره دی، خو په دې کې هم شک نشته چې د الله تعالیٰ ټول کارونه له حکمت نه ډک وي. هېڅ بې هېڅه او تر ګټې پرته یو کار هم نه کوي. الله تعالیٰ په قرآن کریم کې فرمايي:

﴿ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَٰعِبِينَ ﴾[1]

چې موږ دا ځمکه او آسمان خوشې نه دي پيدا کړي، بلکې د هغو په پيدايښت کې مو مقصد لاره. هغه موخه دا وه چې انسان په ځان کې د خدای تعالیٰ صفات رابرسېره کړي او د هغه ښکارندوی شي، ترڅو هغه کسان چې د جګ الوت ځواک نه لري، له خدای تعالیٰ سره اشنا کړي. د خدای تعالیٰ دا تګلاره، د خلقت له پيل نه رانېولې تر دې دمه پورې جاري و ساري ده او په بېلابېلو وختنو کې، خدای تعالیٰ خپل مختلف مظاهر راليږلي دي. کله د خدای تعالیٰ صفاتو د آدم په وسيله تجلا وکړه، کله د نوح په وسيله راوځلېدل، کله له ابراهيمي جسم نه راښکاره شول، کله له موسوي بدن نه راځرګند شول، کله داوود د خدای تعالیٰ څېره نړۍ ته وروښوده او کله مسيح د الله تعالیٰ انوار په خپل وجود کې ظاهر کړل. تر ټولو وروسته او تر ټولو په کامله توګه محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله تعالیٰ ټول صفتونه په لنډيز او په تفصيل سره، هم په انفرادي حيثيت او هم په ټوليزه بڼه، په يو داسې شان او داسې جلال سره نړۍ ته ورښکاره کړل چې پخواني پيغمبران د ده لمريز

[1] الدّخان: ٣٩

وجود پر وړاندې د ستورو غوندې تت پاتې شول. تر رسول کريم صلی الله عليه وسلم وروسته ټول شريعتونه پای ته ورسېدل او د شريعت راوړونکيو ټولو پيغمبرانو د راتلو لار وتړل شوه. دا د کومې پلوۍ په وجه نه وو، نه د کوم لحاظ په خاطر وو، بلکې لامل يې دا و چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم له ځان سره يو داسې شريعت راووړ چې ټولو اړتياوو ته يې ځواب وايه او ټول حاجتونه يې پوره کول. اوس خبره دا ده چې د خدای تعالیٰ له لورې چې څه راتلل هغه په بشپړه توګه راغلل، خو د بندګانو هېڅ ضمانت نه کېده چې سمه لار به نه پرېږدي او دا ربښتينی تعليم به نه هېروي. په قرآن کريم کې الله تعالیٰ په ښکاره توګه فرمايلي وو:

﴿يُدَبِّرُ ٱلۡأَمۡرَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ إِلَى ٱلۡأَرۡضِ ثُمَّ يَعۡرُجُ إِلَيۡهِ فِي يَوۡمٖ كَانَ مِقۡدَارُهُۥٓ أَلۡفَ سَنَةٖ مِّمَّا تَعُدُّونَ﴾[1]

چې الله تعالیٰ به خپل دا وروستی کلام او خپل دا وروستی شريعت له آسمانه پر ځمکې قايم کړي او د خلکو مخالفت به ورته په لار کې خنډ نه جوړوي، خو يوه موده وروسته به ورو ورو بېرته آسمان ته وروخېژي او په زرو کلونو کې به له نړۍ څخه پورته شي. څرنګه چې پاس يو حديث بيان شوی و، رسول کريم صلی الله عليه وسلم د دين د ټينګښت دا زمانه درې سوه کاله ګڼلې ده. قرآن کريم هم د «الـمر» په ټکو دا زمانه د ۲۷۱ کاله موده ښيلې ده. که دې ته د زرو

[1] السّجده: ۶

کلونو هغه موده ورواچوو چې دین به بېرته آسمان ته پورته کیږي، دا به ۱۲۷۱ شي. یانې د قرآن کریم له مخه، له نړۍ څخه د اسلام روح د پنا کېدو موده ۱۲۷۱ کاله ده، یا د دیارلسمې پېړۍ پای دی. څرنګه چې لـه قـرآن کریم څخه مـعلومیږي، پـه داسې زمـانـه کې د خـدای تعالیٰ له لورې ضرور یو هادي او لارښود راځي، ترڅو نړۍ د تل لپاره د شیطان منګولو ته ورپرېنوځي او د خدای تعالیٰ حکومت تر ابده له دنیا څخه محوه نشي. ځکه نو لازمه وه چې په اوسنۍ زمانه کې یو کس د خدای تعالیٰ له لورې راغلی وای. هغه چې هرڅوک وای، خو راتلل یې اړین وو. دا څرنګه کېدای شي چې کله د آدم په پیروانو کې خرابي پیدا شوه، خدای تعالیٰ یې پوښتنه وکړه، چې د نوح په پیروانو کې خرابي پیدا شوه، خدای تعالیٰ یې پوښتنه وکړه، چې د ابراهیم په پیروانو کې خرابي پیدا شوه، خدا تعالیٰ یې پوښتنه وکړه، چې د موسیٰ په پیروانو کې خرابي پیدا شوه، خدای تعالیٰ یې پوښتنه وکړه، چې د عیسیٰ په پیروانو کې خرابي پیدا شوه، خدای تعالیٰ یې پوښتنه وکړه، خو د سید الانبیاء، حضرت محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم په امت کې چې خرابي پیدا شي، خدای تعالیٰ یې سرلې پوښتنه ونه کړي. د رسول کریم صلی الله علیه وسلم امت په اړه خو ان دا وړاندوینه شوې وه چې د ده په امت کې به د وړو وړو مفاسدو له منځه وړلو لپاره د هرې پېړۍ په سر کې یو مجدد مبعوث کیږي. کوم عقل دا منلی شي چې د وړو وړو ورانیو له منځه وړلو لپاره د خدای تعالیٰ له لورې مجددان راشي، لکه رسول کریم صلی الله علیه وسلم چې فرمایي:

[ إِنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ لِهَٰذِهِ الْأُمَّةِ عَلَىٰ رَأْسِ كُلِّ مِائَةِ سَنَةٍ
مَّن يُجَدِّدُ لَهَا دِيْنَهَا ] [1]

خو د هغې سترې فتنې پر مهال - چې په اړه يې رسول کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي چې له هاغه وخته چې پيغمبران نړۍ ته راغلي، ټولو يې پرله پسې د دې فتنې په اړه وړاندوينه کړې ده - هېڅ مامور رانشي، هېڅ هادي رانشي، هېڅ لارښود رانشي، د حق دين ته د مسلمانانو راټولو لپاره د خداى تعالىٰ له خوا هېڅ غږ پورته نشي او د ظلمت او تيارې له کندې نه د مسلمانانو د راايستلو په خاطر له اسمانه هېڅ رسۍ را و نه ځړول شي. هغه خداى چې د کايناتو له خلقت راهيسې يې د خپل رحم و کرم بېلګې څرګندې کړي، د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم تر بعثت وروسته يې د رحم و کرم سيند وچ شوى نه، بلکې لا ډېر په جوش راغلى دى. پخوا به که چېرې خداى تعالىٰ رحيم و، د محمديه امت لپاره پکار ده چې لا زيات رحيم واى او پخوا به که چېرې خداى تعالىٰ کريم و، د محمديه امت لپاره پکار ده چې لا ډېر کريم واى. يقيناً دى همداسې دى. قرآن کريم او حديثونه ګواه دي چې هرکله په محمدي امت کې ورانى پيدا شي، خداى تعالىٰ به له خپلې لورې هادي او لارښود ورليږي. په تېره په دې وروستۍ زمانه کې چې د دجال فتنه رابرسېره کېده، عيسويت به برلاسى کېده، اسلام به په ظاهره توګه مغلوبېده، مسلمانانو به دين له لاسه ورکاوه او د پرديو قومونو

---

[1] ابو داوود؛ کتاب الفتن / اصول الکافي ۶۹٤ مخ.

دودونه او رواجونه به يې راخپلول. په داسې حال کې به د رسول کريم صلی الله عليه وسلم يو کامل مظهر راڅرګندېده او د دې زمانې اصلاح به يې کوله. څرنګه چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي:

[ لَا يَبْقَىٰ مِنَ ٱلإِسْلَامِ إِلَّآ اِسْمُهُ وَلَا يَبْقَىٰ مِنَ الْقُرْآنِ إِلَّا رَسْمُهُ ] [۱]

چې اسلام به تش په نوم پاتې شي او له قرآن څخه به يوازې د هغه ليکل پاتې شي. د اسلام مغز به چېرې هم نه تر سترګو کېږي او د قرآن مانا به هېچا ته نه روښانه کېږي.

نو ګرانو! د احمديه سلسلې بنياد پر همدې پخوانۍ تګلاره کېښودل شوی دی او له هغو وړاندوينو سره سم اېښودل شوی دی چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم او تر دوی پخوانو نبيانو د اوسنۍ زمانې په هکله کړې وې. که د دې چار لپاره د مرزا صاحب غوراوی مناسب نه و دا به پر خدای تعالیٰ الزام وي. په دې کې د مرزا صاحب څه خطا ده. خو که خدای تعالیٰ عالم الغيب وي، هېڅ ډول راز ورنه پټ نه وي او ټولې چارې يې له حکمتونو ډکې وي، نو بيا دې ومنل شي چې د مرزا غلام احمد عليه الصلوٰة والسلام دا غوراوی سم غوراوی و او د هغه منل د مسلمانانو او د نړۍ په ګټه دي. ده نړۍ ته کوم نوی پيغام نه دی راوړی، که يې راوړی نو هماغه پيغام دی چې محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم نړۍ ته اورولی و، خو نړۍ اوس هېر کړی. هماغه پيغام چې قرآن کريم وړاندې کړی و، خو نړۍ

[۱] مشکوٰة؛ کتاب العلم، الفصل الثالث / کنز العُمّال، شپږم ټوک ٤٣ مخ.

ورنه مخ اړولی. هغه پیغام دا دی چې د ټولو کایناتو پیدا کوونکی یو خدای دی، چې انسان یې له خپل ذات سره د محبت او تړاو لپاره خلق کړی. د دې لپاره یې پیدا کړی چې په وسیله یې خپل صفات رابرسېره کړي. څرنګه چې فرمايي:

﴿ وَإِذۡ قَالَ رَبُّكَ لِلۡمَلَـٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٞ فِي ٱلۡأَرۡضِ خَلِيفَةٗ ﴾[1]

داسې نو آدم او د هغه نسل د خدای تعالیٰ خلیفه او استازی دی، چې نړۍ ته د خدای تعالیٰ صفتونو په ډاګه کولو لپاره پیدا شوی دی. دا د ټولو بنیادمانو ذمه واري ده چې خپل ژوند د خدای تعالیٰ له صفاتو سره برابر کړي او څرنګه چې یو استازی په خپلو ټولو چارو کې خپل موکل ته بار بار توجه کوي او یو غلام تر هر نوي ګام پورته کولو وړاندې، خپل بادار ته ګوري، دغه راز انسان هم مکلف دی چې له خدای تعالیٰ سره یو داسې تړاو پیدا کړي چې خدای تعالیٰ یې هره لحظه او په هر کار کې لاسنیوی وکړي او تر بل هرڅه زیات ورته خدای تعالیٰ محبوب وي او په ټولو چارو کې پرې توکل وکړي. د همدې ذمه وارۍ پوره کولو لپاره، حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام نړۍ ته راغلی دی. د هغه مسوولیت دا و چې دنیادار خلک دین ته راواړوي، د اسلام واکمني پر زړونو قایمه کړي او محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم بېرته پر خپل روحاني تخت کېنوي، چې شیطاني ځواکونه یې ورنه د لرې کولو لپاره داخلي او بهرني یرغلونه کوي.

---

[1] البقرة: ۳۱

د دې موخې د لاس ته راوړنې لپاره، حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام تر ټولو لومړی کار دا وکړ چې مسلمانان یې د قشر پر ځای مغز ته متوجه کړل. په دې خبره یې ټینګار وکړ چې د اوامرو ظاهر هم خورا ډېر مهم او ضروري وي، خو باطن ته تر پاملرنې پرته، انسان هېڅ ډول پرمختګ نشي کولی. ځکه نو یو جماعت یې جوړ کړ او د بیعت په عهد کې یې دا شرط وټاکه چې بیعت کوونکی به دین ته پر دنیا لومړیتوب ورکوي. په حقیقت کې همدا مرض و چې مسلمانان یې د وَینه‌وو په څېر له درونه خوړل. پر دې سربېره چې دنیا یې له لاسه وتلې وه، بیا هم ټوله توجه یې دنیا ته وه. د اسلام پرمختګ مانا د دوی په اند د واکمنیو ترلاسي پورې محدوده پاتې شوې وه او د اسلام د بریا مطلب یې په اند دا و چې تش په نامه مسلمانان دې په تعلیم او تجارت کې پرمخ لاړ شي. خو که ځیر شو، رسول کریم صلی الله علیه وسلم نړۍ ته د دې لپاره نه و راغلی چې خلک دې یوازې په نامه مسلمانان وبلل شي، بلکې د راتلو موخه یې دا وه چې خلک په رښتینې توګه هغسې مسلمانان کړي څرنګه چې قرآن کریم راپېژندلي:

﴿ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُۥ لِلَّهِ ﴾[1]

چې خپله ټوله هستي د خدای تعالیٰ لپاره وقف کړي او خپلې دنیاوي اړتیاوې د دیني غوښتنو تابع وساتي. دا په ظاهره یوه عادي غوندې خبره ښکاري، خو په حقیقت کې د اسلام او نورو ادیانو

[1] البقرة:۱۱۳

ترمنځ اساسي توپیر همدا دی. اسلام درته دا نه وایي چې علم مه ترلاسه کوه، دا درته نه وایي چې تجارت مه کوه، دا درته نه وایي چې کسب و کار مـه کوه او دا هـم درتـه نـه وایي چې د خـپل حکومـت د پیاوړتیا لپاره هڅه مه کوه. اسلام یوازې د انسان لیدلوری بدلوي. په نړۍ کې د انساني هڅو دوه لیدلوري دي؛ یو له قشر نه د مغزو د ترلاسه کولو هڅه ده او بل یې له مغزو نه د قشر د ترلاسي لیدلوری دی. څوک چې له قشر نه د مغزو لاس ته راوړلو تمه لري، حتمي نه ده چې په خپل مراد کې دې بریالی شي، بلکې زیاتره وخت پکې پاتې راځي. خو څوک چې مغز ترلاسه کوي، له مغزو سره ورته قشر هم ورپه برخه کیږي. د رسول کریم صلی الله علیه وسلم او د ده پیروانو ټولې هلې ځلې د دین په خاطر وې، خو داسې نه ده چې له دنیاوي نـعمتونـو دې بې بـرخې پاتې شـوي وي. طبیعي خـبره ده، څوک چې دین ترلاسه کړي، دنیا به د مینځې په څېر شاته پسې وردانګي. خو له دنیا سره د دین ترلاسی حتمي نه دی او زیاتره وخت نه ترلاسه کیږي. ان زیاتره وخت لا ورپاتې شانتې دین هم له لاسه ورکوي.

حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام د نبیانو په طریقه ګام پورته کړ او د خدای تعالیٰ په امر یې خلکو ته پر دین ټینګار پیل کړ. د ده د ظهور پر مهال په مسلمانانو کې دوه ډوله غورځنګونه جاري وو. یو دا و چې مسلمانان کمزوري شوي دي، ځکه د دنیاوي ځواک ترلاسه کولو هڅه باید وکړي. دویم غورځنګ پخپله دوی جاري کړ؛ چې موږ باید دین ته پاملرنه وکړو، نو لازمي پایله به یې دا وي چې

دنیا به خدای تعالیٰ راته پخپله راکړي.

ځینې خـلک تېر وتـي او فکر کوي چې د ده غـورځنګ هـم د اوسنیو صوفیانو غورځنګونو په شان یو غورځنګ و چې په ظاهري بڼه پر لـمانځونـو او روژې ټینګار کوي او سـم دم سړي د بـاحـجابـه ښځو غـونـدې پـه ګـوښه کېنوي. که ده داسې کړي وي، پـه رښتیا بـه یې د مغز په نامه د قشر ترلاسه کولو تحریک جاري کړی وي. خو داسې یې نه دي کړي. چېرته چې ده پر دیني اوامرو ټینګار کړی، ورسره یې دا خبره واضح کړې ده چې دین د الله تعالیٰ له لورې په دې خاطر راځي چې انساني ذهن وځلوي، ماغزه یې روښانه کړي او عقل یې تېز کړي. ده وویل؛ څوک چې په رښتینې زړه پر دین عمل کوي او له تصنع کار نه اخلي، غوره اخلاق به پکې پیدا شي، دین به ورته د عمل کولـو قـوت ورکړي او دین بـه پکې د سـرښندنې او قـربـانۍ تـومـنه واچوي. ده وفرمایل؛ تاسو دین غوره کړئ، لمونځونه وکړئ، روژې ونیسئ، حج وکړئ، زکات ورکړئ، خو هغه لمونځونه وکړئ چې قرآن یې ښیي، هـغه روژې ونیسئ چې قـرآن یې ښیي، هـغه حـج وکړئ چې قـرآن یې ښیی او هـغه زکات ورکړئ چې قـرآن یې ښیی. قـرآن کریم لـه تـاسو مـازې جګېدل ټیټېدل نـه غـواړي، نـه درنـه د وږي پـاتې کېدو غـوښتنه کوي، نـه مـو بې لـه ګټې د خـپل هېواد پـر ېښودو تـه اړباسي او نه درنه دا غواړي چې تاسو خپل مال له لاسه ورکړئ. قرآن کریم د لمانځه په اړه فرمایي:

﴿ إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ تَنۡهَىٰ عَنِ ٱلۡفَحۡشَآءِ وَٱلۡمُنكَرِۗ وَلَذِكۡرُ ٱللَّهِ

﴿... أَكۡبَرُۗ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مَا تَصۡنَعُونَ﴾[1]

چې لمونځ مو له فحشاء او منکر څخه راژغوري. خو که دا پایله نه راوځي چې قرآن کریم د لمانځه په اړه ښيلې ده، نو ستاسې لمونځ به لمونځ نه وي. همداسې د روژې په اړه قرآن کریم فرمایي:

﴿لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ﴾[2]

روژه د دې موخې لپاره ټاکل شوې ده چې په تاسو کې تقوا او غوره اخلاق پيدا کړي. خو که تاسو روژې نېسئ او پایله یې دا نه راوځي، ښکاره شوه چې ستاسو نیت سم نه دی. تاسو روژې نه نېسئ، هسې ځان وږی ساتئ او ستاسې وږي ساتل د خدای تعالیٰ موخه نه ده. همدارنګه، د حج په تړاو فرمایي چې د بغاوت خیالاتو مخه نیولو او د خپلمنځنیو شخړو له منځه وړلو وسیله ده. نو حج د رَفَث، فِسق او جِدال مخه ډب کولو لپاره دی. د زکات په اړه فرمایي:

﴿خُذۡ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ صَدَقَةٗ تُطَهِّرُهُمۡ وَتُزَكِّيهِم بِهَا﴾[3]

چې زکات د فرد او قوم پاکوالي او د زړونو او فکرونو پاکولو لپاره ټاکل شوی دی. ترڅو چې دا پایلې نه راوځي، ستاسې حج او ستاسې زکات به مازې د نمایش لپاره وي. نو لمونځونه وکړئ، روژې ونېسئ، حج وکړئ، زکات ادا کړئ، خو ستاسې لمونځ، روژې او حج به زه

[1] العنکبوت: ٤٦

[2] البقرة: ١٨٤

[3] التوبة: ١٠٣

هاله ومنم چې نتیجه ولري. له فحشاء او منکر څخه بچ شئ، په تاسو کې تقوا پیدا شي، له بدکارۍ، نافرمانۍ او شخړو جګړو نه په بشپړه توګه ډډه وکړئ، فردي او قومي پاکوالی، د زړه او د فکر تطهیر درپه برخه شي. خو که د چا په وجود کې دا پایلې راښکاره نشي، زه به یې په خپل جماعت کې شامل ونه بولم. ځکه، هغه قشر ته لاس اچولی، مغز یې نه دي ترلاسه کړي چې د خدای تعالیٰ موخه وه. په همدې ډول یې په نورو ټولو عبادتونو کې پر مغز تاکید کړی او فرمایي چې د اسلام هیڅ حکم داسې نشته چې له حکمت څخه تش وي. خدای تعالیٰ په سترګو نه ښکاري، خو زړه یې لیدلای شي. خدای تعالیٰ څوک په لاسو نشي لمس کولی، خو په محبت یې حس کولای شي. نو د مذهب موخه دا نه ده چې پر ظاهري سترګو او لاسونو واکمني وکړي، چې کله پر سترګو او لاسونو حکومت کوي، په دې لامل یې کوي چې زړه او احساسات پاک کړي. ترڅو هغه ځواکونه په انسان کې پیدا شي چې خدای تعالیٰ پرې ولیدای شي او خدای تعالیٰ پرې لمس کړای شي او هغه قوتونه پکې پیدا شي چې د خدای تعالیٰ غږ پرې واورېدای شي. لنډه دا چې په دغو خبرو یې په ټینګار کولو سره، د اسلام پرمختګ ته لیار جوړه کړه. پایله یې دا شوه چې یو جماعت پیدا شو، هغه که وړوکی غونډې هم و، خو داسې و چې دین ته یې پر دنیا لومړیتوب ورکاوه او د اسلام روحاني پرمختیا او د محمد رسول صلی الله علیه وسلم د روحاني پاچاهۍ قیام لپاره یې هر ډول سرښندنې او قربانۍ پیل کړې.

تاسو له ځان سره لږ فکر وکړئ؛ چېرته د احمديانو يو وړوکی غونډې جماعت او چېرته د ګرد سره مسلمانانو ستره ډله، خو د اسلام د خپراوي او پرمختيا لپاره، هغه څه چې احمديه جماعت ترسره کوي، دا نور مسلمانان چې په شمېر کې ورنه په زرګونه چنده زيات دي، تر دوی نيمايي يا څلورمه برخه هم کار کوي؟ آخر دا بدلون څرنګه رامنځته شو؟ په همدې لامل چې حضرت مسيح موعود عليه الصلوٰة والسلام پر احمديانو ټينګار کړی و چې دين ته پر دنيا لومړيتوب ورکړي. دا حقيقت چې کله پر احمديانو راوسپړل شو، د دوی اعمال يوه نوې ښه اعمال وګرځېدل. د يو رښتيني احمدي لمونځ هغسې لمونځ نه دی څرنګه چې يو عام مسلمان لمونځ کوي. ښه هماغه ده، ټکي يو ډول دي، خو مغز بېل دي. يو احمدي لمونځ د لمانځه لپاره ادا کوي او له خدای تعالیٰ سره د تعلق زياتولو په خاطر يې کوي. ښايي څوک ووايي چې دا نور خلک ګنې له خدای تعالیٰ سره د خپل تړاو زياتولو لپاره لمونځ نه کوي؟ زما ځواب ورته دا دی چې قطعًا نه. که تاسې ځير شئ، درته معلومه به شي چې وسمهال له بده مرغه په مسلمانانو کې دا تصور پيدا شوی چې له خدای تعالیٰ سره څوک نيغ په نېغه تعلق له سره پيدا کولی نشي. مسلمانان عمومًا تېروتي چې په دې زمانه کې نه خدای تعالیٰ له بندګانو سره خبرې کوي او نه بندګان په خدای تعالیٰ کومه خبره منلی شي. له يوې پېړۍ زياته موده وشوه چې مسلمانان د الهي الهام له نزول نه منکر شوي دي. پخوا په مسلمانانو کې داسې کسان شته وو چې د الهي کلام د نزول قايل وو، نه يوازې قايل بلکې

داسې ادعاوې يې کولې چې خدای تعالیٰ ورسره خبرې کوي. خو له يوې پېړۍ راهيسې پر مسلمانانو دا آفت نازل شوی دی چې په بشپړ ډول د الهي کلام له جاري پاتې کېدو نه منکر شوي دي، بلکې ځينې علماوو خو د دې حقيقت اظهار هم کفر ګڼلی. حضرت مسيح موعود عليه الصلوٰة والسلام چې نړۍ ته راغی، دا ادعا يې وړاندې کړه چې خدای تعالیٰ راسره خبرې کوي، يوازې له ماسره نه، ان ځوک چې زما پيروي وکړي، زما په پل پل کېږدي، زما تعليم ومني او زما لارښوونه قبوله کړي، خدای تعالیٰ به له هغو سره هم خبرې وکړي. ده پرله پسې نړۍ ته الهي کلام مخته کړ او خپل پيروان يې وهڅول چې دوی دې هم له خدای تعالیٰ نه د دغو پېرزوينو ترلاسي زيار وباسي. فرمايي؛ يو مسلمان پينځه وخته د خدای تعالیٰ پر وړاندې دا دعا کوي چې:

﴿ ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ۝٦ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ﴾[1]

خدايه! موږ ته سيخه لار راوښيه. د هغو خلکو لار چې تا پرې نعمتونه نازل کړي وو، يانې پخواني معزز پيغمبران. نو څرنګه کېدای شي چې دا دعا يې تل تر تله بېکاره لاړه وای او خدای تعالیٰ په مسلمانانو کې هغه لار هېڅا ته هم پرانېستې نه وای چې پخوانو نبيانو ته پرانېستل شوې وه او څرنګه چې پخوانو نبيانو سره يې کلام کاوه، دلته يې له هېچا سره هغسې کلام نه وای کړی. په دې توګه يې هغه رکود په کُلي ډول له منځه وېوړ چې د مسلمانانو پر

---

[1] الفاتحة: ۶، ۷

زړونو پروت و. زه دا نه وایم چې هر احمدي، خو دا ضرور وایم چې هر داسې احمدي چې د حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام موخه یې په بشپړ ډول درک کړې وي، هغه به مازې د یوه فرض اداینې لپاره لمونځ نه کوي. بلکې په داسې ډول به لمونځ کوي چې ښایي خدای تعالیٰ ته د یو څه غوښتلو لپاره ورغلی وي. له خدای تعالیٰ سره د یو نوي تړاو پیدا کولو لپاره ورغلی وي. څوک چې په دې نیت لمونځ ادا کوي، پرې پوهېدای شو چې د هغه لمونځ او د نورو خلکو لمونځ یو شی نشي کېدای.

له خدای تعالیٰ سره یې په تعلق باندې دومره ټینګار کړی چې فرمایي؛ زما د ادعا منلو لپاره خدای تعالیٰ ګڼ دلیلونه وړاندې کړي دي. خو زه درته دا نه وایم چې تاسو هغو دلایلو ته ځیر شئ او غور پرې وکړئ. که هغو دلایلو ته د ځیرنې او پرې د غور کولو فرصت نه لرئ، یا ورته اړتیا نه وینئ او یا داسې انګېرئ چې ګوندې زموږ عقل به د دغو خبرو په پرېکړه کې تېروځي، نو زه درته وایم چې زما په اړه د خدای تعالیٰ پر وړاندې دعا وکړئ او له خدای تعالیٰ نه لارښوونه وغواړئ چې که دا سړی رښتینی وي، موږ ته لارښوونه وکړه او که دروغجن وي، ورنه مو لرې وساته. فرمایي که څوک د زړه له تله او له تعصب پرته څو ورځې په دې ډول دعا وکړي، خدای تعالیٰ به ضرور ورته د هدایت لار پرانېزي او زما صداقت به پرې روښانه کړي. په سلګونو او زرګونو کسانو په دې طریقه هڅه کړې او له خدای تعالیٰ یې رڼایي موندلې ده. دا څومره لوی او روڼ دلیل دی. انسان په

خپل عقل کې تېر وتلی شي، خو خدای تعالیٰ په خپله لارښوونه کې خطا نشي وتلی. دا د هغه سړي پر خپله رښتینولۍ ځومره پوخ یقین ښیي، چې نړۍ ته د خپل صداقت ورپېژندنې لپاره د پرېکړې دا طریقه وړاندې کوي. یو دروغجن ګنې دا ویلای شي چې ورشه زما په اړه له خدای تعالیٰ نه پوښتنه وکړه؟ یو دروغجن کس به داسې ګومان وکړای شي چې دا ډول پرېکړه به د ده په حق کې صادره شي؟ کوم کس چې د خدای تعالیٰ له لورې نه وي او د فیصلې دا ډول لار تسلیموي، ګوندې پخپله پر ځان عریضه کوي او خپله پښه پخپله په تبر وهي. حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام نړۍ ته همېشه دا خبره مخته کړه چې زه له ځان سره په زرګونه دلیلونه لرم، خو زه وایم چې که په هغو دلایلو مو زړونه اوبه نه څښي، بیا مه زما اورئ او مه زما د مخالفانو اورئ. خدای تعالیٰ ته ورشئ او پوښتنه ځنې وکړئ چې زه رښتینی یم که دروغجن. که خدای تعالیٰ ووایي چې زه دروغجن یم، بې له شکه چې دروغجن به یم، خو که خدای تعالیٰ ووایي چې رښتینی یم، تاسې بیا څرنګه زما د رښتینولۍ له منلو نه انکار کولی شئ؟

ګرانو! د پرېکړې لپاره دا ځومره سیده او د راستۍ طریقه ده. په زرګونو کسانو ورنه ګټنه کړې ده او هر څوک چې اوس هم د فیصلې دا طریقه قبوله کړي، ورنه ګټه اخېستلی شي. په حقیقت کې د فیصلې په دې طریقه کې حکمت دا و چې ده باور لاره چې دین پر دنیا مقدم دی. ده به فرمایل چې خدای تعالیٰ موږ ته د مادي شیانو

لیدلو لپاره سترګې راکړې دي، پر مادي شیانو د پوهېدا لپاره یې عقل راکړی دی او د مادي شیانو د ځرګندولو لپاره یې لمر او ستوري هست کړي دي، بیا ځرنګه شونې ده چې د روحاني هدایتونو ځرګندولو لپاره یې هېڅ لار نه وي پیدا کړي. یقینًا هرکله چې څوک ترېنه د روحاني شیانو د لیدلو خواهش وکړي، خدای تعالیٰ به ورته دریڅه پرانېزي. پخپله په قرآن کریم کې فرمایي:

﴿ وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ﴾[1]

هرڅوک چې له موږ سره د لیدلو لېوالتیا ولري او هلې ځلې ورته وکړي، موږ به هرومرو خپله لار وروښیو.

په لنډو کې؛ حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام دین ته پر دنیا د لومړیتوب ورکولو لار هم خپل جماعت ته پرانېسته او هم یې هغوی ته وړاندې کړه چې له ده نه منکر وو. زموږ خدای یو ژوندی خدای دی. اوس هم د عالَم کارخانه چلوي، هم د دنیا او هم د دین. یوه مومن ته پکار ده چې له زیات نه لا زیات تعلق ورسره پیدا کړي او څومره چې کولی شي ځان ورنېږدې کړي او هغه کس ته چې لا پرې هدایت ځرګند شوی نه دی، ضروري ده چې یوازې له خدای تعالیٰ نه رڼایي وغواړي او یوازې د ده په مرسته حقیقت ته د رسېدو زیار وباسي. نو د حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام اصله دنده او اصل پیغام دا و چې د دنیا اصلاح وکړي، بنیادمان یو ځل بیا د خدای تعالیٰ پر لور سوق کړي، هغه خلک چې د خدای تعالیٰ له

---

[1] العنکبوت: ۷۰

لیدو څخه نهیلي شوي دي، په زړونو کې یې له خدای تعالیٰ سره د لیدو یقین پیدا کړي او هغه ډول ژوندون خلکو ته وروپېژني چې د حضرت موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام او د نورو نبیانو په زمانو کې خلکو ته ورپه برخه و.

ګرانو! پخواني کتابونه ولولئ او د خپلو اسلافو تاریخ ته پام وکړئ او له ځانه پوښتنه وکړئ چې د دوی ژوند پر مادیاتو راڅرخېده؟ د دوی چارې یوازې پر مادي تدبیرونو روانې وې؟ دوی خو د خدای تعالیٰ د محبت ترلاسه کولو لپاره شپه ورځ تلولي وو او په دوی کې سوبمن هغوی به د خدای تعالیٰ له معجزو او نښو برخمنېدل. دا هغه ژوند و چې دوی له نورو قومونو پرې بېلېدل، اوس هغه کوم امتیاز دی چې مسلمانان د نورو قومونو په مقابل کې ورنه برخمن دي. که هېڅ داسې امتیاز نه وي، بیا اسلام ته اړتیا څه شوه؟ حقیقت دا دی چې داسې امتیاز شته، خو مسلمانانو هېر کړی دی. هغه امتیاز دا دی چې په اسلام کې تل تر تله د خدای تعالیٰ کلام جاري و ساري دی. د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د فېض او برکت مطلب همدا دی چې سړی همېشه له خدای تعالیٰ سره مستقیم تړاو پیدا کولای شي. د ده فېض په دې مانا نشي کېدای چې مونږ د لیسانس او ماسټرۍ په ازموینښت کې بریالي شو. یو عیسایي ګنې لیسانس او ماسټرۍ ته نشي رسېدای؟ د ده د فېض مانا خو دا نشي کېدای چې مونږ دې کومه لویه فابریکه وچلوو. عیسویان، هندوان او سېکان ګنې داسې فابریکې نه چلوي. د ده فیضان خو په دې مانا نه

دی چې موږ یو لوی تجارتي محل رغولی وي او تر لرې پراتو هېوادونو مو تجارتي کاروبار پیل کړی وي. دا چار هم ټول هندوان، عیسویان او یهودیان ترسره کوي. د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د فیض مطلب دا دی چې د ده په برکت انسان له خدای تعالیٰ سره نېغ تړاو برقرار کړي. انسان د زړه په سترګه خدای تعالیٰ ووینې، روح یې ورسره یووالی پیدا کړي، خوږ کلام یې واوري او د خدای تعالیٰ تاندې او تازه نښې نښانې ورته څرګندې شي. دا هغه څه دي چې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم تر غلامۍ پرته په نړۍ کې هېچا ته نشي ترلاسه کېدای او دا هغه څه دي چې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروان پرې له نورو قومونو بېلېږي. حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام مسلمانان همدې ټکي ته متوجه کړل او همدا خبره یې خپلو مخالفانو ته وړاندې کړه چې دا ورکه شوې مرغلره خدای تعالیٰ ماته راکړې ده او دا ضایع شوی مال یې ماته رابښلی دی او دا هرڅه ماته د رسول کریم صلی الله علیه وسلم له برکته، د ده په متابعت راکړ شوي دي. دا یوازې د ده فیض دی چې دې مقام ته یې رسولی یم. تر دې پرته نور هم ډېر کارونه دي چې حضرت مسیح موعود علیه الصلوٰة والسلام کړي دي، چې ډېر مهم او عظیم الشان دي، خو هغه ټول ثنګزن ماهیت لري. اصل کار یې دا و چې دین ته پر دنیا د لومړیتوب ورکولو او روحانیت پر مادیت د برلاسي کولو کمپاین یې پیل کړ. یقیناً اسلام به پر نورو ادیانو له همدې لارې لاسبری کیږي. موږ به په توپونو او ټوپکونو سره هم له خپلو هېوادونو دفاع وکړو او په دغو اوزارو به پر ځینو

ځينو دوښمنانو غالب هم شو، خو کومه غلبه چې په ټوله نړۍ باندې اسلام ته ورپه برخه کيږي، له هماغې روحاني لارې به ترلاسه کيږي چې حضرت مسيح موعود عليه الصلوٰة والسلام موږ ورته متوجه کړي يو. چې کله مسلمانان رښتيني مسلمانان شي، دين ته پر دنيا لومړيتوب ورکړي او روحاني ارزښتونو ته پر مادي شيانو فوقيت ورکړي، هاله به د عياشانه ژوند هغه دود چې وسمهال د لوېديزو قومونو له لارې زموږ هېواد ته راغلی، پخپله له منځه لاړ شي. بيا به انسان د بل په وينا نه، د خپل نفس په خواهش له لغوياتو لاس واخلي، جدي ژوند کولو ته به مخه کړي، په ژبه کې به يې اثر پيدا شي او همسايه به يې ځان د ده په رنګ رنګين کړي. بيا څرنګه چې د مکې خلکو ويل:

﴿لَوۡ كَانُواْ مُسۡلِمِينَ﴾[1]

هغسې به عيسويان، هندوان او د نورو اديانو پيروان هم ووايي چې کاشکې دوی مسلمان وای او سوکه سوکه دا قول به يې د مکې خلکو په شان په عمل واوړي او دوی به مسلمان شي. ځکه، انسان له ښې خبرې تر ډېره وخته لرې نشي پاتېدای. لومړی لېوالتيا پيدا کيږي، ورپسې هوس پيدا شي، بيا انسان هڅه کوي او په تېر آخر هغه شي ته په منډو منډو ځان رسوي. همداسې به اوس هم کيږي. لومړی به اسلام د مسلمانانو زړونو ته ننوځي، ورپسې به يې پر جسمونو رابرسېره کيږي، بيا به نامسلمانان پخپله د داسې کاملو

[1] الحجر:۳

مسلمانانو نقل کولو ته چمتو شي او نړۍ به له مسلمانانو ډکه او په اسلام اباده شي.

ګرانو! زه په دې کوچنۍ شانته لیکنه کې، تفصیلي دلایل راوړلی نشم او د احمدیت د پیغام ټول جزئیات تاسو ته وړاندې کولی نشم. تش مې په لنډ ډول د احمدیت موخه او د هغه مقصد درته بیان کړی او له تاسو هیله کوم چې پر دې لیکنه غور وکړئ او په دې فکر وکړئ چې په نړۍ کې مذهبي خوځښتونه یوازې په دنیاوي وسایلو هېڅکله برلاسي شوي نه دي. مذهبي تحریکونه همېشه د نفس په اصلاح کولو، په تبلیغ کولو او په قرباني ورکولو سره برلاسي شوي دي. هغه څه چې د آدم علیه السلام له زمانې نه تر دې دمه پورې نه دي شوي، اوس به هم نه کیږي. په هغو اسبابو چې تر ننه پورې د خدای تعالیٰ پیغامونه خپاره شوي دي، داسې به اوس هم د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم پیغام په نړۍ کې خپریږي. نو په خپلو ځانو رحم وکړئ، په خپلو اولادونو رحم وکړئ، په خپلو کورنیو رحم وکړئ، په خپلو قومونو رحم وکړئ، په خپل هېواد رحم وکړئ او هڅه وکړئ چې د خدای تعالیٰ پیغام واورئ او پرې پوه شئ! ترڅو د خدای تعالیٰ د فضل دروازې درته ژر تر ژره پرانېستل شي او د اسلام پرمختګ نور هم لا شاته نه وي روان. اوس موږ ته لا ډېر کار پروت دی، خو د دې کار د ترسرولو لپاره ستاسې راتلو ته په تمه یو. ځکه چې خدایي پرمختیاوې له معجزاتو پرته، د دین خپرواوي سره هم تړاو لري. تاسو راشئ او دا بار له موږ سره په ګډه جګ کړئ، چې د دې

بار پورته کول د اسلام د پرمختګ لپاره اړین دي. له شک پرته، په دې لار کې د قربانی، سرښندنې، ملامتیا، ځورېدنې او دې ته ورته ټولو ازموېښتونو ګالل ضروري دي، خو د خدای تعالیٰ په لار کې یوازې مرګ دی چې حقیقي ژوند رابښلی شي. د دغه مرګ تر سهلو پرته، هېڅوک خدای تعالیٰ ته رسېدای نشي او د دغه مرګ تر منلو پرته، اسلام هم غالب کېدای نشي. نو همت وکړئ او د مرګ دا جام په سر واړوئ، ترڅو زموږ او ستاسې په مرګ اسلام راژوندی شي او د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دین یو ځل بیا تاند او تازه شي او چې دا مرګ قبول کړو، موږ هم د خپل محبوب په غېږ کې له ابدي ژوند څخه خوند واخلو. اَللّٰهُمَّ آمِیْن!

خاکسار

مرزا محمود احمد

د احمدیه جماعت امام

د اکتوبر ۲۷ مه، ۱۹٤۸ء

[ الفضل؛ ۶ نومبر ۱۹٤۸ء ]



د احمدي جماعت بنسټګر، حضرت مرزا غلام احمد قادياني علیه الصلوٰة والسلام د څوارلسمې پېړۍ په درشل کې ادعا وکړه چې دی هماغه مسيح او مهدي دی چې نړۍ ورته په تمه وه. د مارچ پر ۲۳، ۱۸۸۹ء يې د احمدي جماعت بنسټ کېښود. احمدي جماعت له هماغه وخته، د خلکو په تېره د مسلمانانو او بيا د ملايانو له سخت تشدد او مخالفت سره مخ شوی، خو پر دغو مخالفتونو او ازموېښتونو سربېره، د پرمختياوو نوي پړاوونه وهي او وسمهال نېږدې په ټوله نړۍ کې خپور شوی دی. د الله تعالیٰ په فضل سره، په جماعت کې د خلافت سلسله جاري ده. د احمدي جماعت اوسنی او پنځم خليفه سيدنا حضرت مرزا مسرور احمد ايده الله تعالیٰ بنصره العزيز له لندنه د جماعت رهبري کوي.